میوې، ستورې اونور. غیرهندسي شکلونه چې په مختلفوشکلوپه طبیعت کې وجود لري، طبیعت ته یې ځانګړې ښکلاورکړې ده، لکه: د ونو د پاڼوشکلونه، د ګلانوپاڼې، د کب اوالوتونکوښکې اوبدن، ونې، غرونه، تیږې او داسې نور ډېر بېلابېل غیرهندسي حجمونه شتون لري.

**رنګ**– د لیدلو یوډېرارزښتمن عنصر دی چې په عمومي ډول یې د شیانو مخونه پوښلي دي، په طبیعت کې ډېرخالص طبیعي رنګونه شنې زرغونې (د بوډۍ ټال) دي اماد رنګونوبېلابېل ډولونه په آسمان،دریابونو، غرونو، رنګه خاورو، بېلا بېلو ګلانو، پاڼو، مېوو، د پتنګ وزرونو، د الوتونکوبدن او په کبانوکې ترستر ګوکېږي.

ځینې له دې رنګو، لکه: شنه زرغونه د نورپه قسم اوځینې نوریې د رنګه مواد وپه شان دي. په طبیعت کې رنګه مواد په درو ډلو، لکه: د بوټورنګونه، حیواني رنګونه اوپه معدني رنګونووېشل کېږي. د بوټو رنګونه لکه کوردکمن، زعفران، د چای شمه، د اناروپوټکی، د چارمغزوپوټکی، د پیازوپوټکی چې له جوش کولووروسته ښکلي رنګونه جوړوي. معدني رنګونه، لکه: د لاجورد ورنګ، د سکروپوډر، د سرواوسپینوزرورنګونه چې له ځانګړوتېلوسره یوځای کېږي او وروسته له هغه د کارولو وړتیا پیداکوي. دریمه ډله رنګونه چې حیواني اساس لري، لکه: سوررنګ چې له یوې حشرې چې په اوربلکي یا په قرمزدانه مشهوره ده، جوړېږي، یایوډول بنفش رنګ چې د دریایي صدفو له جوشیدو وروسته په لاس راځي.

سربېره پردې انسانانو د کیماوي ترکیبونوپه مرسته ځینې رنګونه جوړکړي دي، مصنوعي رنګونه مختلف ډولونه لري چې د بېلابېلوشیانوپه رنګه کولوکې ترې ګټه اخیستل کېږي، لکه: رنګمالي، د نخي ټوکرورنګول، د پلاستیکي لوښورنګول، د موټرورنګونه او د انځور ګرۍ رنګونه، لکه: ابي رنګونه.

د رنګونوبېلابېل ډولونه له اصلي رنګوڅخه پر لاس راځي. زېړ، سور اواسماني شین ( ابي) اصلي رنګونه دي چې له نوررنګوڅخه نه شي جوړېدلی اوهمیشه باید موجود وي له ترکیب څخه يې نوررنګونه جوړیږي.

(د دوو اصلي) رنګونو له ترکیب څخه ثانوي رنګونه جوړېږي.

زیړرنګ + سور رنګ = نارنجي رنګ

زېړ+ اسماني شین = شفتلي شین

سور+ اسماني شین = بانجاني رنګ

که چېرې هراصلي رنګ له یوه ثانوي رنګ سره ترکیب کړو، دریمه درجه رنګ لاس ته راځي.

زېړ + نارنجي رنګ = زېړنارنجي

زېړ + شفتلي شین = شین بخن زېړ

سور + نارنجي = سورنارنجي

سور+ بنفش = سورخي بخن بنفش

آسماني شین + شفتلي شین = شین ابي

اسماني شين + بانجاني یا بنفش رنګ = ابي لرونکی بنفش
له  درو اصلي او درو ثانوي رنګوڅخه، چې مجموعه یې ۱۲ رنګه دي، د توراوسپین رنګ له ترکیب څخه مختلف رنګونه پر لاس راځي. توراوسپین رنګ ارزښت نه لري، هغه خنثی رنګونه بولي، ولې  له نورورنګوسره د ترکیب په صورت کې رنګونه روښانه اوتیاره کوي، بعضي نوي رنګونه جوړوي. که له یوه رنګ سره سپین رنګ ګډکړو نو ډېرروښانه رنګ جوړېدلی شي. همدارنګه که د یوه رنګ سره تور رنګ ترکیب کړو نو و به ګورو چې رنګ تیاره شوی دی، که تور او سپین رنګونه سره ترکیب کړو نو روښانه ایره رنګه رنګ جوړوي. که د توررنګ اندازه پرې زیاته شي تیاره رنګ جوړوي، همېشه له تیاره رنګونو، لکه: شفتلي شین اویابنفش سره روښانه رنګونه، لکه: زېړ یا نارنجي رنګ ورزیات شي ځکه چې د  شین او بانجاني رنګونو رنګي قدرت زیا ت دی، ډېرکم آبي رنګ ژیړرنګ په شفتلي شین بدلوي.
د آبي او روغني رنګونو ترکیب اسان دی، ځکه چې داحل کېد ونکي اورقیق مواد لري. آبي رنګونه له اوبوسره رقیق کېږي، هرڅومره چې زیاتې اوبه ورسره ترکیب کړو، رنګ روښانه اورقیق کېږي. روغني رنګونه غلیظ دي .
د تېلو له  ترکیب سره رقیق کېږي، د روښانه کولولپاره یې له سپین رنګ څخه ګټه باید  واخیستل شي. د رنګونو د کارولو لپاره له مویک څخه استفاده کېږي چې د هغې په واسطه رنګ له پلېټ څخه اخیستل کېږي، په کاغذ او یا رخت باندې کارول کېږي. کله چې د یوه انځورلپاره له مختلفورنګواستفاده کېږي باید د هررنګ له استفادې وروسته مویک ښه پاک پرېمینځل شي، ترڅورنګ د مویک په ویښتانوکې پاتې نشي او له بل رنګ سره مخلوط نه شي.
په مویک کې د رنګ پاتې کېدل د مویک د ویښتانود لوېدلوسبب هم ګرځي.
**د رنګونوترکیب:** د خپلې خوښې رنګونوجوړول، له آبي رنګونوڅخه ګټه اخیستنه، زیات تمرین ته اړتیا لري. په نقاشۍ کې د رنګونومناسب غلظت لاس ته راوړل او د  سطحو رنګه کول، زیات ارزښت لري. رنګ باید  د ومره ټینګ یاغلیظ نه وي، چې له مویک څخه جلانه شي او نه د ومره اوبلن وي چې څاڅکي ترې ولوېږي. که شین رنګ (اسماني شین ) په لاس کې نه وي، کولی شئ له رنګه پوډروڅخه، لکه: لاجورد اویاد سکروله پوډرو څخه ګټه واخلئ. که سلښت او یا  تیل له  پورته پوډرو سره یوځای کړئ، له دې موادو څخه به رنګونه تیارشي او  په انځورګرۍ کې بې  وکارولی شئ. دا رنګونه ډېرژرخرابېږي او زیاته ګټه ترې نه اخیستل کېږي، له دې امله  د اړتیا په اندازه باید جوړشي. که چېرې معدني پوډر په واک کې نه لرئ، کولی شئ، له پلاستیکي رنګونوڅخه چې د رنګ مالۍ لپاره یې کاروي، په رسامۍ کې ګټه واخلئ. له  دې رنګ څخه یوه قاشقه په پلېټ کې واچوئ او له اوبو سره یې یوځای کړئ ، نقاشي پرې وکړئ. آبي رنګونه، پلاستیکي رنګونه اوپوډري رنګونه د ټاپه کولو او له  لاسي کارو لکه ختین حجمونه او هغه حجمونه چې له  غونجو شویوکاغذو څخه جوړېږي، د رنګه کولولپاره مناسب دي.
له نقاشۍ مخکې باید  هغه طرحه چې غواړي رنګه کړي لومړی یې اندازه  په پنسل وکاږئ اوپنسلي خطونه ځکه چې که د رنګ د لاندې ولیدل شي، د انځورښکلاله منځه وړي.

په نقاشۍ کې رنګونه په دوو ډولوکارول کېږي، طبيعي رنګونه ( واقعي ) اوذهني رنګونه، د نوي ځوانانو نقاشۍ په بېلابېلوموضوع ګانو کې ذهني رنګونه کارول کېږي.هرڅومره چې د ځوانانوسن يا عمر لوړېږي، په هماغه اندازه دوی له واقعي رنګونو سره علاقمندي پيداکوي. د هنر ښوونکي دې د زده کوونکوپاملرنه مختلفوواقعي رنګونه واړوي دوی دې د ذهني رنګود کارولو په وخت کې آزاد پرېږدي، د مثال په توګه کوم رنګونه لري له زده کوونکو دې و پوښتل شي، چې د ونو د پاڼو په هکله معلومات ورکړي او بيا يې دوی ته شرحه کړي، چې په منۍ کې د ونوپاڼې په ژېړ، نارنجي، سور نارنجي اوقهوېي رنګونولېدل کېږي، دوی دې د طبيعت د رنګونو د څرنګوالي په اړه وپوهوي اوهم دې له دوی څخه وغواړي، چې په خپلونقاشيوکې غير واقعي رنګونو څخه هم ګټه واخلي، خپل ذهني انځورونه په ذهني ډول رنګ کړي اوپه دې وسيله د د وی خلاقيت وروزي. په مختلفولوستونوکې که نقاشي ذهني او ياد اصل له مخې وي، د وی دې له ذهني رنګونوڅخه ګټې اخيستنې ته چې د د وی ځانګړی احساس بيانوي، آزاد پرېږدي.

**اوبدنې يا جوړښتونه**: بېلا بيلې پديدې سربېره پررنګ اوبدنې هم لري. په مناسبه روښنايي يا نور کې د بېلابېلو رنګونوتوپير پر بصري حس درک کولی شو او د هر رنګ ليدل په موږ کې ځانګړی احساس راپاروي. د اوبدنې يا بافت پيژندنه سربېره د ليدلو پر حس د لمس کولو حس ته هم اړتيالرو. موږ اوتاسې د ماشومتوب له د ورې څخه د مختلفوپديد لمس کول، لکه: زيږه، نرم، هواراولطيف تجربه کړيدي او د هغو ځانګړتياوې موخپل خيال ته سپارلي دي. له دې کولی شوچې اوبدنې وپېژنوچې کومې هواري او کومې زيږي دي، ځکه نو زموږد ليدنې حس زموږ سره مرسته کوي، ترڅود اوبدنو بېلابېل ډولونه وپېژنو او بيا يې د لمسي حس په واسطه خپله پيژندنه بشپړکړو.
مختلفې اوبدنې موږ په خپله شاوخوا کې تجربه کوو دا پر دوو ډلوويشل کېږي، طبيعي اوبدنې اومصنوعي اوبدنې ډېر زياتې اوبدنې ليدل کېږي. په طبيعت کې انسانانو د مصنوعي اوبدنو د جوړېد ولپاره له طبيعي اوبدنوڅخه الهام اخيستی دی. اوبدنې د کيفيت له نظره په د وو ډلووېشل کېږي. هوارې اوبدنې يوازې د ليدلوپه واسطه په مناسبه روښنايي کې د پيژندلو وړدي بصري اوبدنې او ځينې اوبدنې چې لوړې اوژورې لري. سربېره پر ليدلو د لمسي حس په واسطه هم پېژندل کېدلای شي.
په طبيعت کې بېلا بېلې هوارې اوبدني په بېلابيلو رنګونو شتون لري چې د مختلفورنګونودرلود ونکي دي لکه ملغلرې، د ګلانوپاڼې، هوارې ډبرې، د د لفين د بد ن پوستکی، پنګو او انسان. ځينې طبيعي اوبدني سربېره په بصري ارزښت لامسه يې ارزښت هم لري، لکه: د ونو د تنې پوستکي، د مېږو وړی، د کشپ د شاډبره، د کب د بد ن پوستکی د مارپوستکی، د خربوزې او اناناس پوستکی.انسانانو په مختلفواوبد نوکې چې په خپل لاس يې جوړې کړيدي، له طبيعت څخه يې الهام اخيستی دی. د مثال په توګه بصري اوبدنې درخت په ټوټوکې په بېلابېلوطرحوخال لرونکي، راهدار،څلورخانه يې ليدل کېږي.

بصري، لاسسي اوبدنې په زيړو او پنډو ټوټو، لکه: مصنوعي خرمنې، قالينې، بوجۍ، مخ پټوونکي، پښوپټوونکی د ديوال سطح، پوزی، ګل لرونکي شيشه، کاشي اوسراميک په برجسته ډيزاينونو ښکلي کېږي.
د بصری – لامسيي او بدنو د جوړېدو لپاره له مختلفو لارو، لکه: د رنګ شيندل، رنګ مالي، تورېل، غونچول يا څوروله قالب جوړول اومهر ولو څخه ګټه اخيستل کېږي.
هنرمندانوپه کاشي کاري، خښتوکارولو، په فلز باندې د قلم وهلو، په لرګي کې شبکه جوړونه، ختمه يادېره، په ګچ اولرګي کې کيندني، په لاس ګنډل شوي شيان، لکه: ګل ګنډياسکويي، ټغراوبد نه، قالين اوبدنه، د لاسي صنايعوبېلابېلې څانګې، حسن خط، انځورګري، هيکل جوړونه اومعماري مختلفې اوښکلې اوبدنې جوړوي. په زياترو انځورګريواوحسن خط کې بصري اوبدنې لېدل کېږي، ولې په کند نکاريو، شبکه کيندلو اوقالبونوکې بصري – لامسيي اوبدنې وجود لري.
**تناسبونه**: په اووم ټولګي کې زده کوونکي د طبيعت، تصويرونو له الفباسره بلدشول. په اتم ټولګي کې دعنصرونوترمنځ پراړيکو ټينګار شوی دی، لکه څرنګه چې د الفباتوروله ترکيب څخه کلمې جوړېږي او د کلمو له يوځای کېدوڅخه جملې منځ ته راځي، همدارنګه په طبيعت کې دخط شکلونه، رنګونه اوجوړښتونه په زياته اندازه وجودلري چې دطبيعت جملې جوړوي.
يوه ونه چې د تنې، ښاخونو(خطونه ) پاڼواو دهغې دشينوالي (حجمونو) مجموعه ده. ښوونکی کولی شي، له زده کوونکوغواړي چې په يوه الوتونکي، ميوه، ګل اوهره بله نمونه کې دطبيعت الفبا وښيي اونوم يې واخلي.
په بل پروګرام کې زده کوونکي دخطونو،شکلونو، رنګونواومختلفو جوړښتونوترمنځ اړيکوته پاملرنه وکړي، د اندازې اوشکل ترمنځ اړيکه پر تناسبونوپورې اړه لري، هريوزده کوونکی دې د خپلې خوښې څاروي وټاکي او دڅاروي د بدن د بېلابېلو برخو د اندازو اوشکلونو د تناسبونو په هکله دې پخپلوکې سره وغږېږي. په ترتيب سره دې زده کوونکي د مختلفوڅاريو په هکله سره وغږېږي.د اندازواوشکلونوترمنځ پرتناسب سربېره هره طبيعي ښکارنده يا پديده تناسب اوښکلالري. له زده کوونکوغواړئ چې په طبيعي بېلابېلو ښکارندو (پديدو)کې لکه مېوو، سابو او ګلونو ترمنځ تناسبونو ته پاملرنه وکړي، کومې حيرانوونکي نمونې چې پيداکړي، نوروټولګيوالو ته يې هم بيان کړي اوکه امکان لري نمونې يې هم وروښيي.
د جوړښتونو او تناسبونو د بيان لپاره ډېرښه مثال کيشپ او يا د هغه تصويردی، د کيشپ بدن ښکلی اوحيرانوونکی دی. دا جوړښتونه د تناسب اړيکه جوړوي او د څېړنې وړدي. دکيشپ دورمېږ د لاندنۍ برخې جوړښتونه د لاسو له جوړښتوسره وصل دي، چې د دواړوځرنګوالی د کيشپ او د هغه له تيرې سره هم غږې لري. زده کوونکي دې هغه مناسبه نمونه چې لاس کې يې لري، روښانه کړي اوخبرې دې پرې وکړي. د طبيعي بېلابېلونمونوپيداکول،

دخطونو ترمنځ تناسبونه، شکلونه، رنګونه جوړښتونه باید زده کوونکوته بیان کړو او دوی طبیعت لټونې ته وهڅوو او د طبیعت دکتاب لوستلوته یې وهڅوي.

**لرې اونږدې**: په هنرکې دایـومطرح بحـث دی، چـې موجـودات اوپدیـدې پـه فضـاکې څـه ډول ښـکاري د انسـان سترګې د فاصلې په دلیل هغه څه چې لرې واقع دي،کوچنې اوکم رنګه لیدل کېږي دې مفهوم ته د(سترګوخطایي) وایي، ځکه چې په حقیقت کې نه پدیدې وړوکې شوي او نـه یـې هـم پـه روښـانتیا کـې کـوم تغییرراځي.پـه رسامۍ اونقاشۍ کې دلریوالي ښودلو لپاره بېلا بېلې لارې موجودې دي، چې دتاریخ په اوږدوکې په مختلفوتمدنونوکې سرته رسېدلي دي. ماشومان دلرې اونـږدې لپـاره پـر زړه پـورې لارې مـنځ تـه راوړي اوفضـا پـه غیرواقعـي ډول پـه خپلـو انځورونوکې ښيي. دوخت په تېرېدوسره چې زده کوونکي لويېږي، د ودانیو او پدیدو لریوالي اونږدېـوالي تـه پاملرنـه کوي ،غواړي چې هغه په خپلوانځورونوکې په ښکاره توګه وښيي. ښوونکی کولی شي، چې دوی وهڅوي چې پـه ځیرسره ورته وګوري او له دوی څخه وغواړي چې هغه څه چې انځـوروي، پـه ډېرغـور او دقـت یـې رسـم کـړي، ترڅوواقعیت سره نږدې والۍ. کوچنې کول اولویول په موجوداتو کې لرې اونږدې راښيي. که دوه شکلونه یو مخ تـه اویو د هغې شاته پرمیزکېږدو چې د شاشکل یوڅه پټ کړي، دا یوه بله لاره دپرسپکټیو(لرې اونږدې ) ده. که چېـرې ځینې زده کوونکي د دې توان پیداکړي چې هغه څه چې غواړي رسم کړي، ځانګړي وخت تـه اړتیـا لـري، امکـان لري، چې ځینې له دوی څخه د پرسپکټیو د رسـمولو د پیژنـدلو اوسـرته رسـولو تـوان ونـه لـري. ښـوونکی بایـد لـه ډېروساده لاروڅخه ګټه واخلي. دپرسپکټیوبله ساده لاره چې په نقاشۍ کې کارول کېږي هغه داده چې هغـه څـه چې نږدې ښکاري د صفحې په لاندنۍ برخه اوهغه څه چې له لرې ښکاري، دصفحې په پورتنۍ برخه کې رسم شي. کله کله ماشومان او نوي ځوانان په خپلوانځورونو کې له دې لارې څخه ګټه اخلي.

**ریتم:** ریتم د خطونو،شکلونو، رنګونو، اندازواوجوړښتونوترمنځ اړیکه محکموي. هرډول تکرارچې قاعده اونظم پکې وي، ریتم منځ ته راوړي. ریتمونه په دووډلومنظم اوغیرمنظم وېشل کېږي.که دخطونو، رنګونـو، یادانـدازو د تغییـرد تکرارفاصله یوشان وي، منظم او یو نواخت ریتم منځ ته راځي. لکه دجوارولپه دانو، دبوټوپه اغزیـو او دخربـوزې پـه زړیوکې دا منظم تکراردی، چې منظم ریتم یې بـولي. کـه چېرتـه فاصـله دخطونـو، رنګونـو تـرمنځ انـدازې مختلفـو فاصلوکې راټوکېدلي وي، یا د انارو دانې چې په هره برخه کې ځانګړی نظم لري منظم ریتم دي.

له ریتم څخه د نقاشۍ پـه بېلابېلوبرخـوکې ګټـه اخیسـتل کېـږي دمثـال پـه توګـه زده کـوونکي دمنظـرو د انځورولـو پروخت کې هغـه ځـانګړي ریـتم چـې د دوو فاصـلو تـرمنځ وجـود لـري، وښـيي اوکوښـښ وکـړي چـې فاصـلې او دونواندازې په پام کې ونیسي اوپه انځورونوکې یې وښيي. په غرنۍ منظره کې چې کورونه په غروکې جوړشوي وي،

دکورونودانـدازو اوفاصـلوریتم پـه پـام کـې ونیـول شـي، بیـادې انځورشـي، پـه هـره ونـه کـې ځـانګړي تناسـبونه د تنې د ښاخونوترمنځ وجودلري او ډېرښکلی ریتم منځ ته راوړي. دونې دانځورولوپروخت باید زیاته پاملرنه وشي اوبیارسم شي.
دطبیعت پر نقاشی سربېره په ښکلونوطرحوکې ریتمونـه لیـدل کېـږي. دبېلابېلونمونودکـاپي کـولـوپر وخـت دخطونـو، رنګونو،شکلونو او اندازو ریتم ته باید ښه ځیرشواوهغه په ډېرغور انځوراورنګه کړو.
رنګه ریتم په طبیعي موجوداتو کې په زیاته پیمانه لیـدل کېـږي، لکـه دغومبسـې پـه بـدن کـې دزیړاوتوررنـګ ریـتم، درنګونوریتم دکب په بدن کې، د لمر ګلي د رنګونو ریتم،په هنري اثاروکې په ځانګړي ډول په زینتي طرحوکې.
درنګونوریتمیک تکرارد دې سبب شوي دي، لکه: د قالینوپه طرحوکې درنګونوریتم، ګـل ګنـډ، کاشـي کـاریوچې ټوله سطحه یې په مختلفورنګونوپوښلې ده. د رنګونومنظم تکرارپه منظموفاصلوکې دښکلاسبب کېږي.
د هنرښوونکي کولی شي له زده کوونکوغواړي چې دبېلابېلوطبیعي پدیدوریتمونه وښېري اوهم وګوري چې په هره طبیعي پدیده کې څه ډول ریتمونه وجودلري، آیـا پـه انـدازوکې ریتمونـه یـا پـه رنګونـوکې شـکلونه لیـدل کېـږي. زده کوونکي د څېرنو په ترځ کې په دې ټکي باید وپوهېږي، لکـه: د ښې او انـدازې لـه مخـې د ودانیـو پـه رنګونـو کـې یوښکلی ریتم را منځته کوي، د طبیعت د نمونو د تناسبونو او ریتم پیداکول، څېړل اوپلټل له زده کوونکوسره مرسته کوي چې په کتنوکې پراختیا ومومي. دلیدنوتوان یې زیات شـي او درسـامی اولاسـي کارونوپـه مسـتقیموفعالیتونوکې زیات تاثیرلري.
**هنري وسیلې**: د هنرمضمون په هردرسي ساعت کې چې عملي فعالیتونه، لکه: انځورګري او یا لاسي کارونه سرته رسېږي، ځانګړي سامان اووسـیلوته اړتیـاده. داوسـیلې د اووم ټـولګي پـه کتـاب کـې پـه درو ډلـو اثـر پرېښـودونکې، اثرمنونکي اوکومکي وسیلې تقسیم شوي دي چې په بېلابېلوهنري فعالیتونوکې کارول کېږي.
د هنرښوونکی باید پاملرنه وکړي چې که هغه مواد اووسیلې چې په کتاب کې یې یادونه شوي ده، په لاس کې نه وي کولی شي چې ورته وسیلې یې ځای ونیسـي او فعالیـت پـرې سـرته ورسـوي. دوسیلونشـتوالی د دې دلیـل نشـي کیدای چې له فعالیتونوڅخه صرف نظروشي. هرښوونیز پروګرام ځانګړی تاثیرلري ا و د هغې سرته رسـول ضـروري دي. نوکه آبي رنګ په لاس کې نه وي په رنګه پنسل، پلاستیکي رنګونوچې د رنګمالی لپاره کـارول کېـږي، رنګـه طبیعي پوډر یا هره هغه ماده چې ستاسـې پـه چاپیریـال کـې وي، هنـري فعالیتونـه پـرې سـرته ورسـوي.که مناسـب کاغذمونه درلود، دشیرینیودقطی له کاغذ یا د بوټو له قطیوڅخه ګټه واخلئ. که سلښت مونه درلودل یوڅه بورې ته اوبه واچوئ او د کاغذونو ننښلولو لپاره یـې وکـاروئ. کـه زده کـوونکي مویـک نـه لري.مویـک جـوړول تاسـې پـه تصویرکې وینئ، د هغې جوړول دوی ته ورزده کړئ. یوله لارو څخه چې د هنرښوونکي یې کاروي، داده چې لـه زده کوونکوڅخه وغواړئ چې دفعالیتونودسرته رسولولپاره مناسـب کاغذونـه، رنګونـه اونورموادپیـداکړي. د وی داسـې

شیان پیداکولی شي چې دنوروزده کوونکولپاره هم دګټې اخیستنې وړشي. شاید ځینې زده کوونکي په نوو فکرونو داسې وسیلې جوړې کړي چې په هنري فعالیتونوکې ګټورې تمامې شي.

په کلي ډول عنوان شوي وسیلې دفعالیتونودسرته رسولولپاره یوه بهانه ده، نشتوالی یې د پروګرام دسرته رسولومانع نه ګرځي، د هرلوست په پای کې دزده کوونکو آثارننداري ته وړاندې کړئ، ترڅودوی یو د بل کارونه وګوري اوتجربه ترلاسه کړي. یوله لارو څخه داده چې په پرې یا تاربانديې انځورونه وځړول شي اوپه مناسبه ارتفاع کې وي چې ټول یې ووینې. د حجمونو د لیدلولپاره چې دلاسي کاروپه پروګرام کې شامل دي، کولی شي د ټولګي له میزونوڅخه او یاد میزونوترمنځ له فاصلې څخه ګټه واخلئ، ترڅوټول حجمونه ولیدل شي. د هر ټولګي د پرمختګ لپاره، مهمه داده چې زده کوونکي باید وهڅول شي چې د هرنوي فکر، په کارونه کې نوښت، په زړه پورې وسیلوجوړول او د نظافت په ساتلوکې هڅول دي.

د هنردښوونکي ډېرمهم کاردادی چې دوخت مدیریت وکړي، چې په درسي ساعت کې موضوع معرفي کړي، هغه څه چې دموضوع په اړه ضروري دي بیان کړي، هغه عکسونه چې دموضوع په پېژندنه کې مرسته کوي، وروښيي اوله زده کوونکووغواړي چې په رسامۍ کې د کار له تماميدووروسته دې خپل آثار د ننداري لپاره کېږدي ، بیادې وهڅوي، د کارو په هکله دې سره وغږېږي اوپه پای کې دې ورته لارښوونه وکړي چې د ځان اوټولګي دنظافت په اړه هلې ځلې وکړي.

### ۱ –۲ په منځنی دوره کې انځورګري:

په ابتدایي دوره کې دزده کوونکوانځورګري خاصې ځانګړتیاوې لري. هغوی هرڅه چې احساسوي، د ذهني شکلونواورنګونوپه مرسته یې ننداري ته وړاندې کوي. اندازه یې سره ورته والی نه لري. هغه څه چې دوی ته ډېرارزښت لري، هغه لوی اوغټ انځوروي. دودانیوداخلي اوباندنی فضایوځای تصویروي. ترڅوهغه څه چې د کوټې په دننه کې واقع دي وښيي، بېلابېل شیان غواړي په یوه وخت رسم کړي، یاڅوپاڼې کیسه په یوه صفحه کې د لوړو او ژورو او پړسپکتیو د ښودلو، ځانګړي طریقې په نوي ډول منځ ته راوړي.

بایدوپوهېږوچې داځانګړتیاوې دوخت په تیرېدوسره تغیرکوي. دزده کوونکو له فزیکي ودې سره سم په ذهني لحاظ هم پراختیاکوي اوواقعیت اوواقعي نړۍ ته ورنږدې کېږي. لرلږ تناسبونواواندازوته پاملرنه کوي. واقعي رنګونه درنګه کولولپاره کاروي اوپه (پړسپکتیو) پوهېږي اوغواړي هغه څه چې ویني انځوریې کړي.

په کُلي ډول منځني دوره دماشومتوب اولویوالی تر منځ ده، نوځکه دشاګردانولیدنې لویانوته ورنږدې کېږي. دا بدلون مشخص نه دی، چې په کوم سن کې کېږي.ځکه دهرزده کوونکي شرایط بېل بېل دي. نوپه دې اساس دانځورګري فعالیتونه د دوی له توان سره سم په پام کې نیول شوي دي. وړاندې شوي پروګرامونه په دروبرخو ویشل شوي

دي. ذهني انځورګري، له واقعي نړۍ څخه انځورګري او د اسلامي مسایلوله هنرونو څخه کاپي کول دي. د دې پروګرامونو وړاندې کول له زده کوونکوسره مرسته کوي چې هغه څه چې په خپل ذهن مجسم کوي انځور یې کړي. داډول فعالیتونه دماشومتوب ددورې ذهني خلاقیت ته ادامه ورکوي او دمفکورې دوړاندې کولودامکان زمینه برابروي اوپه طبیعي ډول دماشومتوب له دورې وروسته دمختلفوموضوعګانودتجسم توان دتصویرونوپه جوړولوکې کمېږي امادمناسبوتمرینونوپه وړاندې کولوسره داځانګړتیاوې ساتي او دوام پیداکوي. ذهني انځورګري په دووډولووړاندې شوې ده، لومړی ( ناخاپي انځورګري) نومېږي په دې معناچې لومړی ځانګړې موضوع زده کوونکوته نه وړاندې کېږي بلکې دیوه فعالیت په جریان کې دوی کولی شي چې له خطونویا له جوړوشویوسطحو څخه استفاده وکړي، په هغې کې دې شکلونه پیداکړي اوخپلې ذهني مفکورې دې انځورکړي.

دوی دې له خطونو، شکلونواورنګونوڅخه په ګټه اخیستلو سره دخپلې خوښې موضوع ترسیم کړي. داطریقه دزده کوونکو ذهن فعالوي او ددوی د خلاقیت غوټې خلاصوي. په دویمه طریقه کې یا له مختلفوموضوع ګانوڅخه ذهني انځورګري، ځانګړې موضوع زده کوونکوته وړاندې کېږي او دوی خپل ذهني تصویرله موضوع څخه نقاشي کوي یعنې په شکل جوړولوپیل کوي. د ذهني انځورګرۍ په پروګرام کې ښه داده چې لومړی زده کوونکي د لوست له موضوع سره اشناشي. دموضوع په اړه په مختلفوطریقوپه هرلوست کې دمعلوماتووړاندې کول. د مختلفوتصویرونوښودل چې د موضوع په هکله پوره معلومات وړاندې کړای شي.دخوښې شوي موضوع په هکله ( دموضوع مختلف حالتونه یادموضوع ځانګړتیاوې ) باید بیان شي او د زده کوونکو خپل منځي خبرې اترې او د موضوع په اړه د ښوونکي غږیدل او تبصره، دا فعالیتونه زده کوونکی انځورولو ته تیار او اماده کوي، دا طریقه باید د انځورولو مخکې وکارول شي.

سربېره پردې کولی شودموضوع په اړه بېلابېل عکسونه زده کوونکوته وروښیو، ترڅودوی یې پرتله کړي. خودانځورګري په وخت کې باید عکسونه پټ شي، ترڅودوی تقلیدونه کړي او دوی هریوخپل هغه یادونه چې دعکسوله لیدلوڅخه یې لري وکاږي، په یادولري چې په مختلفوذهني انځورونوکې غیرواقعي رنګونه په خپلوکاروکې وکاروي او دوي بایدمجبورنکړو، چې داصل په شان کاروکړي. د ذهني انځورګرۍ یوازینې موخه دا ده چې زده کوونکي له یوې موضوع څخه مختلف تصویرونه رامنځ ته کړي.

د واقعي نړۍ په انځورګري کې داسې پروګرامونه شامل دي، چې زده کوونکي د خپل چاپیریال په هکله فکر او دقت ته اړباسي، شکلونه، رنګونه، جوړښتونه یا اوبدنې سره پرتله کړي. تناسبونه، لرې او نږدې او بېلا بېل ریتمونه په خپلو انځورګریو ( نقاشي) کې په کار یوسي چې دا پروګرام کاملاً ذهني فعالیت دي، چې دا د زده کوونکو په انځورګریو کې مرسته کوي چې د ذهني انځورونو او د ربښتیني نړۍ د انځورولو دواړه برخې په عین وخت کې پراختیا ومومي، په دې فعالیت کې موضوع زده کوونکو ته سپارل شوی او دوی باید په ډېر غور او دقت هغې ته وګوري او د شکلو ځانګړتیاوې، رنګونه، جوړښتونه او اندازې وڅېړي. هغه څه چې لرې وې او یا نږدې پوره پاملرنه

وکړي او دوی باید تجربه کړي، چې د شکلونو څنګ په څنګ کېښودلو باندې کولی شي چې لریوالی او نږدېوالی وښيي.

**ریتم** :په نقاشي کې یو مهم بحث دی چې زیات ارزښت لري.

ریتم د ونو ځای په ځای کولو او د غرونو ریتم، په مني کې دونو د پاڼو د رنګو ریتم او یا په بازارونو کې د میوې خرڅولو په دوکانو کې د مختلفو میوو د رنګونو ریتم یا هر ډول قانونمند یا با قاعده تکرار ته چې په شکلونو، رنګونو،خطونو جوړښتونو او اندازو کې لیدل کېږي، باید په زده کوونکو ټینګار وشي، چې په خپلو انځورونو کې یې وښيي. د د ې فعالیت د سرته رسولو موخه له طبیعت څخه ریالیستکي تقلیدنه دی، بلکې: دا موضوعګانې له زده کوونکو سره مرسته کوي چې د طبیعت د ښودلو لومړنی تجربې وړاندې کړي. دوی طبیعت ته څه ډول ګوري؟ هغه څه چې ګوری په ذهنې انځورلو کې څومره بریالی دي او کوم ټکي دوی ته باید وویل شي په کتنو کې دې له غور او دقت څخه کاروا‌خلي. دا هم باید ذکر کړو چې ښوونکي نباید دوی ته انځورونه وکاږي او یا د کارکولو په بېلا بېلو وختو کې د دوی په ځای تصمیم ونیسي.

ښوونکي باید پاملرنه وکړي چې زده کوونکي په دې سن کې کولی شي، چې د قبول وړتصویرونه وکاږي اما د لویانو د نقاشیو چې سیوري او روښنایي پکې کارول شوي دي، د دې ټولګیو د زده کوونکو له وسه نه دي پوره، نو ځکه دوی باید مجبور نه کړو چې د لویانو په شان انځورونه وکاږي. دا پروګرام په حقیقت کې د ذهني نقاشي او د لویانو د ریالیستکي نقاشي تر منځ واقع ده. د نقاشي پروګرامونه چې داتمو او نهمو ټولګیو لپاره ځانګړې شوي دي د اسلامي هنرونو د آثارو کاپي کول دي. دا مناسب فعالیتونه د هنر د تاریخ په لوستونو کې په پام کې نیول شوي دي په هر لوست کې یې د اسلامي هنرونو د ډیزاینونو او طرحو کاپي وړاندې شوي دي، په دې تمرینو کې د ډیزاینو په انځورلو کې نظم، تناسبونه، ریتم او ښکلاوې د دوی ذهن ته ورنقلوي. په طرحو او رنګونو تاکید د زده کوونکو د ښکلا پیژندنې ذوقي روحیه روزل کېږي.

څرنګه چې وویل شول چې د نقاشي فعالیتونه په درو برخو تصویرلټونه، تصویر جوړونه او د ډیزاینو کاپي ویشل شوي دي. هغه فعالیتونه چې د تصویر لټونې جنبه لري، د کارکولو ځانګړې موضوع وجود نه لري او زده کوونکي له بېلا بېلو خطونو څخه په ګټه اخستنه په ( اووم ټولګي) کې په خطونو نقاشي او په ( اتم ټولګي) د سیایي په ټکو او په ( نهم ټولګي) کې په رنګه ټکو شکلونو او بېلا بېلې موضوعګانې پیدا او انځوروي.

### ۳-۲- لاسي کار

زده کوونکي د نقاشي په برخه کې له خط او صفحي سره بلدشوي دي. د لاسي کار په برخه کې د ځینو حجمونو د جوړولو له طریقوسره بلدیږي او زده کوي چې څه ډول خط او صفحه په درې اړخیزه حجم چې فضا اشغالوي واړوي.د لاسي کار جوړولو لپاره له ډېرو موادو څخه ګټه اخیستل کېږي. په نهم ټولګي کې له کاغذ، مقوا، د رس خټه او طبیعي موادو، لکه: ډبره ، لرګي، د نباتاتو پاڼې او داسې نور کارول کیږي.

د لاسي کار، جوړول د زده کوونکو د ذهن ، سترګو او لاسونو تر منځ د هم غږئ محصول دي چې د شيانو او حجمونو په جوړولو کې مرسته کوي. د شيانو د جوړولو په عمليه کې زده کوونکي لومړی شکل لټونه او وروسته په شکل جوړونه پيل کوي.

په شکل لټونه کې زده کوونکي خپل چاپيريال ته ګوري او کوښښ کوي چې هغه مواد پيدا کړي چې کوم شي ته ورته وي، لکه: ميوه، تيږه يا لرګي چې امکان لري يوه الوتونکي ته ورته وي، انتخاب کړي او سبنوکه او د سترګوځايونه يې په رنګه موادو جوړکړي، ترڅو تکميل شي.

په شکل جوړونه کې، مواد د خپلې ذهني طرحي په شان خپل شکل ته تغيير ورکوي، تياروي يې، څنګ په څنګ يې ږدي او يا يې يو له بل سره وصل کوي، ترڅو هغه څه چې غواړي، جوړيې کړي، د مثال په توګه د رس له ختې څخه يوالوتونکی جوړوي په کلی ډول ويلی شو چې:

١. د چاپيريال په اړه د زده کوونکو غور او دقت او حساسيت زياتوي.
٢. د زده کوونکو خيالونو، فکرکولو او خلاقيت ته پراختياورکوي.
٣. د دوی فزيکي توان او خواس په ځانګړې ډول د بصرې او لامسي حس غښتلی کوي.
۴. زده کوونکي د مختلفو موادو، وسيلو د قابليتونو او له کارولو سره بلدوي.
۵. د زده کوونکو توجه بدلون او ښکلا جوړونې ته واړوي.
٦. زده کوونکي له خپلو آدابو، دودونو او فرهنګ سره بلدوي.
٧. دوی ته دبوختيا او د خوندورو وختو زمينه برابروي.

**د لاسي کار د جوړولو مواد او وسيلې**

د لاسي کار د جوړولو مواد او وسيلې په دوو ډلو ويښل کيږي، طبيعي او مصنوعي.

طبيعي مواد، د تيږو مختلف ډولونه، د نباتاتو پاڼې او شاخونه، پوستکې، ميوې، د نباتاتو دانې، د الوتونکو بڼکې او داسې نور. دا هر يو يوازې او يا د ترکيب په صورت کې ښکلي شکلونه جوړوي.

مصنوعي مواد، دکاغذو بېلا بېل ډولونه او رنګه کاغذونه، فلزي او يا پلاستيکي سيمونه، او د ښکلا وسيلې، لکه: فيته، رنګه ستارې او د نقاشي وسيلې د لاسي کارو د جوړولو لپاره کارول کيږي.

**په لاسي کار کې نښلول يا ترکيب**:

د نوي ترکيبونو او ديوه حجم د جوړولو لپاره له يو بل سره د موادونښلول ارزښتناک رول لري. د لاسي کار په جوړولو کې زده کوونکي اتصال او ترکيب کې حيرانوونکې طريقې پيدا کوي.

**د نښلولو (اتصال )ډولونه**:

١. د سوريو له لارې اتصال، د يو تيز نوکې لرونکي شي په واسطه بايد سوری وشي او بيا فيته له هغو سوريو څخه تيره شي.

۲. د تنې په واسطه نښلول (اتصال).

۳. د ستېپلر په واسطه اتصال یا ګنډدن.

۴. د شکاشتیپ، کنډ، سلښتواو په لوند شوي قندیا بورې اتصال.

۵. د قطع شوي کاغذ په واسطه اتصال، لکه: او بدل او یا دونو دنریو لښتو اوبدنې.

٦. د ستنې ، سنجاق، کرېږ ستنې ، د ویښتانو سیخک په واسطه نښلول( اتصال).

۷. د دوو ټوټو د رس خټې یو بل سره نښلول، لکه د یوه لاستي نښلول د هغې په بدنه پورې.

## د رس خټې کارول

ډیره ساده او پریمانه ماده چې د انسان چارچاپیره شتون لري، هغه خاورې او خټې دي، انسان له خټو څخه په ګټه اخیستني او له هغه څخه یې د خاورینو لوښو او نورو شیانو په جوړولو کې بې شمېره آثار جوړ او تولید کړیدي. دغه آثار له لوحو او بېلا بېلو خاروینو شیانو څخه عبارت دي. کیدای شي چې زده کوونکي له خټو څخه د لوښو له جوړولو سره بلدیا آشنا وي. په هر حال دوی د کار په لړ کې د خټو له ځانګړتیاوو سره به بلد وي او له هغه څخه به یې ګټه اخیستنه از مویلي وي.

د معماري په ډیرو ښکلو انځورونو، لوښو او نورو بېلا بېلو مصرفي او هنري شیانو، لکه پخې خښتې، کاشي، هیکلونه او نور هغه آثار دي، چې له خټې څخه جوړشوی دي.

د هېواد بېلا بېلو سیمو ته په تګ را تګ او د موزیمونو په لیدلو سره کولی شئ، ډیر ښکلي( خاورین) لوښي ووینئ، د خاورینو لوښو اصلي او جوړوونکي ماده د رس خاوره ده. د رس خټې د جوړولو او تیارولو لپاره یوه ورځ مخکې د رس خاوره غلبیل کړئ، یوه اندازه خاوره په یوه مناسب لوښي کې واچوئ، پر هغې لږې لږې اوبه هم واچوئ، ورو ورو هغه د خمیرې په شان و اخښئ، هغه په سوکو نو ووهي، ترڅو خمیره شي، کوم وخت چې خټه په لاس پورې ونه نښلي، نو اوبه یې سمې او په کچه دي، جوړه شوي خټه په یوه پلاستیک کې تاوکړئ او ویې ساتئ.

د کار په وخت کې لږه خټه را واخلئ او هغه بوړکۍ کړئ، بیا یې کوږ کړئ، که چېږې خټې چاود پیدانه کړ ، نو خټه تیاره ده. که چېرې بوړکي چاودون وکړ، هغه واخشئ، ترڅو تیاره شي.

له دې خټې داسې یوه ماده جوړیږي، چې هر ډول شیان ورڅخه جوړیدای او هغه د ډیرې مودې لپاره ساتلی شي، هر څومره چې خټه ډیره وساتل شي، له هغې څخه د شیانو د جوړولو امکان زیاتیږي، خټه له وچیدو وروسته کلکیږي، خو د نم یا رطوبت په واسطې بیا نرمیږي، د حجم له جوړیدو مخکې د خټې وچیدل ډېر مهم دي، باید ورو ورو وچه شي، ځکه خټه په آزاده هوا او د نم د نشتوالی په صورت کې وچیږي، خو د ننه پلویې لالوند وي، داخلي فشار د بهرنۍ سطحې د چاودیدو سبب کېږي. له دې امله باید ورو ورو وچ شي، د ورو وچیدو لپاره جوړ شوی حجم یا شکل په پلاستیک کې ننه باسو او په پلاستیک کې واړه واړه سوری وکړو، ترڅو هوا په لږه او ټاکلي کچه په پلاستیک کې ننوزي او جوړ شوی حجم ورو ورو وچ شي، د خټې له وچیدو وروسته کولی شو، هغه پوخ

کړو، چې دې پاخه شوی شي یا حجم ته سفال وایي. خټه د تودوخې له امله په نغري یا کوره کې کلکه او محکمیږي، داسې کلکیږي چې د وخت په تیریدو سره یې بڼه بدلون نه کوي، د رس خټې رنګ ترپخیدو وروسته تغییر کوي.

که چیرې د رس خاوره خالصه وي، له پخیدو وروسته یې رنګ سپینیږي، که چیرې د هغې د جوړښت په ترکیب کې د اوسپني آکسید شتون ولري، په سره رنګ او که دا خټه کاربن ولري، په تیز او غلیظ رنګ او که ګرافیت ولري، (خاکستري) یا دایرو رنګ ځانته غوره کوي.

زده کوونکي د منځنیو زده کړو په لومړی دوره کې د خټینو شیانو او حجمونو جوړولو، وچولو او رنګولو لارې چارې زده کوي.

**په ټولګي کې د کار کولو لارښوونې:**

په هر ښوونیز یا درسي ساعت کې د رس له خټو د حجمونو جوړول اړین دي.

۱. زده کوونکي باید له پاکو جوړوشویو خټو ګټه واخلي.

۲. باید نوکونه یې لنډوي.

۳. د کارکولو پر وخت مخ ترونی( پیش بند) او یا د کار مناسب کالي واغوندي هغوی کولی شي چې له زړو کالیو او په ځانګړې توګه له هغه کمیس څخه چې لستوڼي یې لنډوي او یخن ونه لري ګټه واخلي او تکمې ( ټنی یا ګروي) یې د شا له خوا وتړي.

۴. د کار د میز مخ په بې کاره کاغذونو یا پلاستیک پټ کړي.

۵. د اوبو له مناسب لوښي ګټه واخلي، د اوبو لوښی باید لږ دروند او لږ څه لوی وي، چې په آساني سره چپه نه شي، یوه سفالي کاسه د دې کار لپاره مناسبه ده.

۶. د کار له پیل وړاندې ښوونکي باید له زده کوونکو سره په خبرو پیل وکړي، د پخوانیو تجربواو د هغه څه په باب چې غواړي هغه جوړ کړي، له دوی سره خبرې وکړي.

۷. زده کوونکي باید له پروګرام سره سم د خټو کار پیل کړي.

۸. د کار پر وخت باید زیاتې خټې په پلاستیک کې واچوي، ترڅو وچې نه شي.

۹. له خټو څخه د حجمونو د جوړولو پر وخت چاود شوي ځایونه، په کوتو او یا لانده اِسفنج لوند او یو څه بې ټینګ کړو، چې بیرته جوړاو ونښلي.

۱۰. د خټو د دوو ټوټو یوه له بلې سره د نښلولو ( لکه لوښي ته چې لاستي وراچوي) د نښلیدو ځای باید په نری څوکه وګروو، د لږو خټو او لږ فشار په واسطه هغه سره ونښلوو.

۱۱. د کار له ختمیدو وروسته د کار میز په اسفنج سره پاک کړو.

۱۲. کولی شئ چې د جوړ شوي حجم پر مخ ډول ډول رسمونه او نقشونه وباسئ او یا یې جوړکړئ او د هغه په وسیله ښکلاورکړئ.

۱۳. زیاتې شوي خټې باید په پلاستیک او یا پلاستیکي لوښي کې واچوي.

۱۴. د کار له ختمیدو وروسته باید لوښي پرمینځي او په مناسب ځای کې یې کېږدي.

۱۵. له ختو څخه جوړ شوی شی مخکې له وچیدو په یوه سم ځای، په پستو کاغذونو کې تاوکړئ او وبې ساتئ.
۱۶. د کار جامي باید وباسئ او په مناسب ځای کې یې کېږدئ.
۱۷. د کار له ختمیدو وروسته باید لاسونه په صابون پاک پریمنځئ.
۱۸. زده کوونکي کولی شي چې د حجم له وچیدو وروسته یې رنګ کړي، د دې کار لپاره کولی شو له هغو رنګونو څخه چې ډېر پوشش ولري، ګټه واخلي. لکه: روغني رنګ، اکریلیک،ابي رنګ،که چېرې له آبي رنګ څخه ګټه واخیستل شي، ښه به وي، ځکه چې په آساني سره په اوبو کې حل کېږي او له هغې څخه ګټه اخیستنه آسانه ده. د یوه جوړشوي شي د ښه او مناسب رنګولو لپاره له لوی او کوچني مویک څخه ګټه واخلئ، د لویو برخو د رنګولو لپاره باید له لوی برس یا مویک څخه ګټه واخیستل شي. د کار په پای کې کولی شئ چې رنګ شوی شی په ورنس او یا جلا لرونکو غوړیو ولړئ، ترڅو رنګ ژر له منځه ولاړنه شي.

**۴-۲- د هنر له تاریخ سره آشنایي یا بلدتیا**

فرهنګ د یوه ملت د هویت ټاکونکی، له هغه تاریخي لاملونو سره چې د هنر او فرهنګ په جوړښت کې اغیزه لري،د هنر او فرهنګ د ارزښت او اهمیت بیان (له پخوا څخه تر اوسه) د ملتونو د برخه لیک په اړوند د نوي نسل له اړینو زده کړو څخه دي، له دې امله د هنر تاریخ د هر هېواد د تاریخ مهمه برخه جوړوي، چې د تاریخ په اوږدوکې د ملتونو د فکري او اساسي بدلونو څخه دي، د تاریخ په اوږدوکې دملتونو فکري او فرهنګي بنسټونه، د یرغلګرو او لوړتیا غوښتونکو لویو قومونو چې د نورو د هېوادو د نیولو نیت یې درلود، تر اغیزې لاندې راوستل، د دوی کړه وړه یې د وژلو او ورانی پر ځای د آبادي او د هنري ارزښناکو آثارو د رامنځ ته کولو لوري ته واړوه. له دې امله د هر هېواد د فرهنګ او هنري قدامت او نورو ارزښتونو سره بلدتیا، د هنري آثارو د پېژندلو ، ساتنې، او د هنر او فرهنګ رامنځ ته کول د ملتونو د پراختیا او پرمختیا سبب کېږي. له دې امله د افغانستان او نړۍ د هنر تاریخ ته ځغلنده نظر په دې تعلیمي دوره کې، چې د ځوانانو د شخصیت جوړولو وخت دي، ډېر اهمیت لري، هغه ځوانان چې د خپل هېواد د هنر او فرهنګ له تاریخ سره بشپړه بلدتیا ولري، هیڅکله هم د فرهنګي نیمګړتیاوو له ستونزو سره نه مخامخ کېږي. او د پردیو فرهنګونو تر اغیزې لاندې نه راځي. دې ټکو ته په پاملرنې سره د هنر د تاریخ یوه برخه په منځنیو دوروکې د هنري زده کړو طرحه په پام کې نیول شویده، ترڅو زده کوونکي زده کړي، چې هنري میراثونه د یوه هېواد لپاره ډېر تاریخي او فرهنګي ارزښت لري، د هغې د ساتنې په هکله هڅه اوهاند وکړي. د نهم ټولګي د هنر له تاریخ سره آشنایي څو برخې لري، لومړي برخه یې د معاصر افغانستان له هنر سره اړیکه لري.

**د تدریس لارښود پلان**:

د زده کړ ې موخې، د درس ورکولو طریقې، د لوست ورکولو لپاره اړین شیان او د لوست ارزښت باید بیان کړي. د لوست ورکولو په اخر کې ښوونکي باید ( د زده کړې مضمونونه او ارزښتونه) او زده کوونکي ته د زده کړې فعالیتونه وروښيي. د هنر له تدریس سره د ښوونکو زیاته آشنایي او د هنري فعالیتونو اجراکول زده کوونکو ته په ټولګي کې د تدریس لارښود پلان د ټولو لوستونو لپاره وړاندې کېږي.

## د لومړۍ لوست د تدریس د لارښود پلان( نهم ټولګي)

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **په رنګه خپو یا ټکو انځورګري** | |
| ۲-د زده کـــــــړې ( پــوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي، چې د لوست په پای کې په لاندې موخـو باندې برلاسي شي.<br>۱- په رنګه ټکو کې د تصویر له لېولو سره بلدشي.<br>۲- په رنګه ټکو کې په شکلونو پوه شي.<br>۳- د ذهني شکلونو پیدا کول او په نقاشي کې د هغه په ارزښت پوهیدنه. | |
| ۳- د لوست ډولونه | کتنې، توضیحي، ننداره، عملي. | |
| ۴- د زده کـــــــړې د اړتیاوړ وسایل | آبي رنګونه، مویک، پنسل، د اوبو لوښي کاغذ. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني بیا کتنه، د ستاینې درجې،( ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضـعیف) د عمـل کولـو ارزونـه، کتنې، ارتباطي مـهارتونه. | |
| ۷- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>له زده کوونکو سره روغبړ د دوی د روحي او جسمي روغتیا پوښتنه.<br>پوښتنې او ځوابونه او نوی لوست ته د دوی تیاري. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>آیا په رنګه ټکو مو له دې مخکې نقاشي کړې وه؟ | دقیقې ۵ |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه<br>د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
|---|---|
| ۱- ښوونکي دې د کتاب له مخې د رنګه ټکو د نقاشي په هکله زده کوونکو ته معلومات ورکړي.<br>۲- که زده کوونکي په دې نقاشي کې له کومې پوښتنې سره مخامخ کېږي، نو تاسې هغې ته ځواب ووایئ او له دوی سره لازمه مرسته وکړئ؟<br>۳- د دوی کار وارزوئ او وې لیکئ. | ۱- زده کوونکي دې د کتاب تصویرونو ته په ځیر وګوري او د ښوونکي توضیحاتو ته دې هم په کلکه غوږ ونیسي.<br>۲- زده کوونکي دې د ایجاد شویو شکلو په اړه ننداره جوړه کړي.<br>۳- د دې لوست په هکله په خپلو ګروپو کې سره وغږیږي او پایلې بې نوروته ووایي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

تصویر لټونه د نقاشي ډېره مهمه برخه تشکیلوي. په طبیعت کې په طبیعي ډول ډېر لوی او واړه ټکي لیدل کېږي که هغې ته په ځیر وکتل شي. بیلا بېل تصویرونه پکې لیدل کېږي. دې ټکو ته د زده کوونکو ورپام کول د ښوونکي له دندو څخه حسابیږي او یا داسې نورې لکې یا ټکي په هر ځای کې په زیاته اندازه لیدل کېږي د مثال په توګه: د کورونو په دیوالو باندې د باران د څڅیدو ځایونه او یا په طبیعي ډول د موادو له یوه بل سره د ټکر په نتیجه کې په غرو، ډبرو او په دښتو کې زیات ټکي په وجود راغلي دي. هغو ته باید ژور فکر وکړو او په خورا غور او دقت یې وګورئ د حیوان، الوتونکی یا انسان تصویرونه به پکې ووینئ او زده کوونکي دې کارته وهڅوي. ښوونکي باید په دې هکله زده کوونکو ته د فکر کولو او په ټکو کې د تصویر لټونې په برخه کې توضیحات ورکړي. دا کار زده کوونکي د خپل چاپیریال شاوخوا ته متوجه کوي. دا فعالیت د زده کوونکو ذهني قوه دومره غښتلي کوي چې نه یوازې د هنر د مضمون لپاره بلکې د ټولو مضمونو لپاره ګټور ثابتیږي.

زده کوونکي دې د مویک په واسطه رنګ له پلیټ څخه واخلي او په یوه سپین کاغذ دی بې ومشی او دا کار دې څوواره تکرار کړي، ترڅو کاغذ له رنګه ټکو څخه ډک شي او بیا دې په هغې کې تصویر لټونه پیل کړي او د خطوپه ورزیاتولو دې تکمیل کړي.

**کورنۍ دنده:**

د درسي کتاب له مخې زده کوونکو ته په هر درسي ساعت کې کورنۍ دنده ورکړئ او دا کار په ټولو لوستو کې تر سره کړئ.

## دوهم لوست د تدريس د لارښود پلان( نهم ټولګي)

**د تدريس موده ( يو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرليکونه | د مطلبونو بيان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د معاصر افغانستان د هنر تاريخ** | |
| ۲-د زده کـــــــړې (پـــوهنيزې، مهـــارتي او ذهنيتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخـو باندې برلاسي شي.<br>۱- د معاصر افغانستان د هنر له تاريخ سره بلدشي.<br>۲- په هېواد کې د معاصر هنر د کارولو په طريقو او په پراختيا پوهېدل.<br>۳- په افغانستان کې د معاصر هنر ارزښت ته قايليدل. | |
| ۳- د لوست ډولونه | کتنې، توضيحي، پوښتنې او ځوابونه. | |
| ۴- د زده کـــــــړې د اړتياوړ وسايل | د درسي کتاب تصويرونه، پنسل، کاغذ او قلم. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني بياکتنه، تحريري او تقريري ، ارتباطي مهارتونه، کتنې، د ستاينې درجې. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>له زده کوونکو سره روغبړ، پوښتنې او ځوابونه، د درسي کتاب تصويرونو ته د زده کوونکو ورپام کول. | وخت ۵ دقيقې |
| | **د انګيزې رامنځته کول:**<br>هنرمندان چې له بېلا بېلو هنري مؤسسو څخه فارغيږي، کوم کارونه سرته رسوي؟ | دقيقې ۵ |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
|---|---|
| ۱- ښوونکي دې د معاصر هنر په هکله چې په درس کې د ښکلو تصویرونو ترځنګ کښل شویدي، معلومات ورکړي.<br>۲- د هغو هنرمندانو په هکله چې له هنري مؤسسو څخه فارغیږي معلومات ورکړي.<br>۳- د زده کوونکو له لوست څخه د ګټې اخیستنې کچه معلومه کړي او له ځان سره دې ولیکي. | ۱- زده کوونکي دې د هنرمندانو د کار طریقه او تصویرونه وګوري او پخوانی هنر دې له نوې هنر سره پرتله کړي.<br>۲- زده کوونکي دې د ښوونکي خبرو ته په ځیرکتیا غوږ ونیسي او د خپلو معلوماتو ساحه دې پراخه کړي.<br>۳- د تلویزیون، رادیو او رسانیو له لارې موکه کومه هنري قیصه اوریدلی وي، په ټولګي کې یې نورو ته بیان کړي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

زده کوونکي په اووم ټولګي کې له اسلام څخه مخکې د افغانستان دهنر له تاریخ او هنري آثارو سره آشنا او بلد شول، په اتم ټولګي کې په اسلامي دوره کې د افغانستان هنر او هنري آثار ور وپیژندل شول. په نهم ټولګي کې په نوي زمانه کې د ټولنې د بدلونونو په پیژندلو پیل کوي او په اوسني وخت کې د هنر د رامنځ ته کیدو زمینې په ګوته کوي. په دې لوست کې د اوسني افغانستان د آثارو نمونې زده کوونکو ته ورپیژندل کیږي.

## دریم لوست د تدریس د لارښود پلان( نهم ټولګي)

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **په مصنوعي موادو ټاپه کول** | |
| ۲-د زده کـــــــړې (پــوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکوڅخه غوښتنه کیږي چې دلوست په پای کې په لاندنیوموخولاس بری پیداکړي.<br>۱- د مصنوعي شیانو په واسطه د ټاپه کاري له طریقې سره آشناشي.<br>۲- د ټاپه کاري په نمونو کې شکل ومونډلی شي.<br>۳- د ټاپه کاري نمونو په بشپړولو سره شکل جوړوکړای شي.<br>-4د ټاپه کاري دیوې نمونې اجراکول له مصنوعي شیانو سره د شکل موندنه او د شکل جوړونه | |
| ۳- د لوست ډولونه | کتنه، پوښتنې اوځوابونه، توضیحي،نمایشي او عملي. | |
| ۴- د زده کـــــــړې د اړتیاوړ وسایل | ډبل کاغذ، ابي رنګ، د اوبو لوښی، قلم، پنسل رنګه، فلزي سکه، اسفنجي ټوټه او پلاستیکي کڅوړه... | |
| ۵- د ارزونې ډول | بیاکتنه، د ستاینې درجې، ملاحظه، ارتباطي مهارتونه. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه:**<br>پوښتنې او ځوابونه،د ګوتو او یا طبیعي موادو په واسطه ټاپه کول. | وخت ۵ دقیقې |
| | **دانګیزې را منځته کول:**<br>د پوښتنې طرحه کول: د بې کاره موادو په واسطه کوم کارونه تر سره کولی شو؟ | دقیقې ۵ |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
|---|---|
| ۱. هغه مواد چې زده کوونکو را ټول کړيدي، ټولو ته وروښيئ.<br>۲. له مصنوعي موادو سره د ټاپه کاري طريقه زده کوونکو ته توضيح کړئ.<br>د زده کوونکو طريقې وګورئ او ترلاسه شوی نتيجه د ځان سره نوټ کړئ. | ۱. زده کوونکي نمونې ګوري او د هغې د شکل په باب خبرې اترې کوي.<br>۲. د کار ضروري مواد او شيان تيار وي.<br>۳. مصنوعي مواد له خپلې خوښې رنګ سره په رنګ ولړئ او د کاغذ په مخ يې ووهئ چې بيل بيل او په زړه پورې نقشونه رامنځ ته شي.<br>۴. نقشونه وګورئ او آشنا شکلونه پکې ولټوئ.<br>۵. د خطونو په مرسته تر لاسه شوي نقشونه په پيژندل شوي شکل و اړوئ.<br>۶. نمونې نندارې ته کيږدي او د هغې په باره کې خبرې اترې وکړئ ځان او انډيوالان ارزيابي کړئ. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

د ټاپه کولو طريقې او روشونه زده کوونکو ته وروښياست او له مصنوعي مواد و څخه، لکه: جوړ شوي مهرونه، ټنې، د قلم سرپوش، د بوتل سرپوش، فلزي پيسې، پنسل پاک د ګيلاس لاندنۍ برخه او داسې نورو څخه په ټاپه کولو کې کارواخلي.

# څلورم لوست د تدريس د لارښود پلان( نهم ټولګي)

**د تدريس موده ( يو درسي ساعت)**

**د آرټ او هنر مضمون:**

| سرليکونه | د مطلبونو بيان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **په خټو کې شبکه جوړونه** | |
| ۲-د زده کـــــــړې ( پــوهنيزې، مهــارتي او ذهنيتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخـو باندې برلاسي شي.<br>۱- په خټو کې د شبکې جوړولو لارې وپېژني.<br>۲- د برجسته نقوشونو ، معماريو، کاشي، هيکلونـو، پخې خښـتې او د نـورو لوښـو لـه جوړولو سره بلدشي.<br>۳- د هنري لوښـو په جوړولو کې د خټې په ارزښت پوه شي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | عملي کار، کتنې، توضيحي، نندارېز. | |
| ۴- د زده کـــــــړې د اړتياوړ وسايل | د رس خټه، آبي رنګ، د ترس کاغذ، پنسل، مويک آش ګز، ميز، موډليريا پلاستيکي چاړه، د اوبو لوښي. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني کتنه، د ستاينې درجې، ( ډېرښه، ښه، منځنۍ او ضعيف) کتنې، ارتباطي مهارتونه. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه | **لومړنی فعاليت:**<br>له زده کوونکو سره روغبړ او بيا د لوست په اړوند پوښتنې او ځوابونه د وسيلود راوړلو اطمينان او د عملي کار پيلول. | وخت ۵ دقيقې |
| | **د انګيزې رامنځته کول:**<br>آيا د خټې په صفحه د ډيزاين د اچولو په طريقه پوهيدئ؟ | دقيقې ۵ |

| د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
| --- | --- |
| ۱- زده کوونکي د ښوونکي لارښوونې په پام کې نیسي، په کاغذ کې انځور شوی ډیزاین دې د ختې صفحې ته ورنقل کړي.<br>۲- اضافي خټه د مودلیر او یا پلاستیکي چاړې په واسطه ترې وباسئ.<br>۳- هغه په پلاستیکي کڅوړه کې پټ کړئ، ترڅو ورو ورو وچ شي.<br>۴- تروچیدو وروسته یې د خپلې خوښې په رنګو رنګه کړئ. | ۱- ښوونکو دې د ختینې صفحې په مخ د ډیزاین د اچولو د طریقې په هکله معلومات ورکړي.<br>۲- د ډیزاین د جوړیدو وروسته د رنګونو طریقې وروښیاست.<br>۳- د دوی کارونه ارزیابی کړئ او پایله یې له ځان سره ولیکئ. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

دا لوست له ختو څخه د لاسي کارو (کاردستي) لپاره ځانګړی شوی دی. د شبکه کاري د جوړولو او تیارولو لپاره باید زده کوونکي د شبکه کاري په مناسبه طریقه وپوهیږي، له هغه وروسته خټه تیاره کړي، یوه ختینه لوحه دې له خپلې طرحې سره سمه برابره کړئ، طرحه د ختو پر مخ واچوي، هغه نقش د ختینې لوحې پر مخ واچوي. زیاتې یا اضافي برخې بې لرې کړي، د کار دا پړاو باید په ډېره پاملرنه، حوصله ښکلا او ظرافت تر سره شي، ترڅو د لوحې بېلا بېلې برخې یوه له بلې جلا نه شي. د ټولو اضافي برخو له لرې کولو وروسته د شبکې غاړې صافې او لشم کړئ، ترڅو چې ښکلایې زیاته شي، څنګه چې د لوحې برابرول څو ساعته اوږدیږي، اړینه ده چې نیمګړی کار په یوه پلاستیکي کڅوړه کې تاوکړئ، ترڅو هغې ته هوا ونه رسیږي او ژر وچ نه شي، که چېرې ختې چاودون وکړ، د ګوتو په فشار او لږڅه نرمه خټه بې سره ونښلوئ. کله چې د سطحې پر مخ چاود ولیدل شي، له لږو اوبو سره هغه لوند کړئ او په ګوتو سره چاودلې ځای جوړ کړئ، د کار له پای ته رسیدو وروسته ختینه لوحه په یوه مناسب ځای کې کېږدئ، چې ورو ورو وچه شي او ونه چوي. له هغه وروسته چې ختینه لوحه وچه شوه، کولی شی هغه رنګ کړئ. زده کوونکي د رنګ په غوره کولو او د رنګو په ښه کې خپلواک (آزاد) پریږدئ. له وچیدو وروسته د لوحې پر مخ ورنس ووهئ، د ختینې لوحې د کارونې وخت باید ډیر شي، که چېرې تاسې د اور نغري(کوره) په واک کې لرئ، لومړی ختینه لوحه په کوره کې کېږدئ او پخه بې کړئ، وروسته بې رنګ کړي او په هغه ورنس ووهئ.

## پنځم- لوست د لارښود پلان( نهم ټولګي)

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د لویدیځ هنر** | |
| ۲-د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکو څخه هیله کېږي چې دلوست په پای کې په لاندنیوموخوباندې لاس برى پیداکړي.<br>۱- د لویدیځ هنر او د کار د لارو پیژندل.<br>۲- د رنسانس د دورې د هنرمندانو او د دوی د کار له طریقو سره بلدتیا.<br>۳- دلویدیځو هېوادونو هنرمندانو په آثارو پوهیدل. | |
| ۳- د لوست ډولونه | کتنې، توضیحي، مباحثه ګروپي | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | د لوست کتاب، د ښوونکي لارښود، قلم، کاغذ، پنسل. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني بیاکتنه، دستاینې درجې، او ارتباطي مهارتونه. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعاليتونه:**<br>د زده کوونکو دحال او احوال پوښتنه، سؤالونه او ځوابونه له نوي لوست سره د تیر لوست اړیکه. | وخت ۵ دقیقې |
| | **پاروونکي انګېزې:**<br>آیا د پخوانیو هنرمندانو د کارکولو لاره مو وپیژنده؟ | دقیقې ۵ |

| ۲- دښوونکي دتدريس فعاليتونه (د مفاهيموزده کړه اوارزونه) | د زده کوونکو ديادولو فعاليتونه |
|---|---|
| ۱- ښوونکي دې د درسي کتاب له مخې د رنسانس د دورې په هکله توضيحات ورکړي.<br>۲- د زده کوونکو پوښتنوته دې سم ځواب ووايي.<br>۳- له دوی څخه دې هم د نوي لوست په اړه پوښتني وکړل شي.<br>۴- د دوی پوهه وارزوئ او له ځان سره دې وليکئ. | ۱- زده کوونکي بايد د ښوونکي توضيحاتو ته پوره پاملرنه وکړي.<br>۲- د نوی لوست په اړه له خپل ښوونکي څخه پوښتني وکړي.<br>۳- د ښوونکي سوالونو ته سم ځواب ووايي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

دا برخه د لويديځ هنر پيژندنې ته ځانگړې شويده. زده کوونکو په اووم ټولگي کې د ډبرو دورې ( پخوانی ډبرې، منځنی ډبرې او د نوو ډبرو دوره)  او د لرغونو تمدنونو هنر ( بين النهرين، ايران، مصر، هند، چين، جاپان، يونان او لرغوني روم) سره بلد شويدي.

له ديني هنرونو، لکه: مسحيت( صدرمسحيت، بيزانس او گوتيک) سره په اووم ټولگي کې او په اتم ټولگي کې له اسلامي هنرونو ( ښايسته ليکنو ( خوش نويس)، معماري، لاسي هنرونه او ميناتوري) ورپيژندل شويدي.

په نهم ټولگي کې له نړيوال هنرڅخه د لوديځ هنر د رنسانس له دورې تر معاصرې يا اوسني دورې په پيژندنه پيل کوو. نن ورځ د نړۍ هنرمندان تر ډيرې کچې د لوديځ هنر تر اغيزې لاندې راغلي دي. په همغه ډول چې اوسني ټولنې د لوديځ تمدن تر اغيزې لاندې دي. د دې بدلونو او د هغې اغيزې د پرديو د فرهنگي يرغل په شاتمبولو کې مهم رول لري. لوديځې نړۍ د رنسانس له دورې په (هومانيستي) (انسان گرايي) د تمدن طرحه جوړه کړه، چې نن ورځ يې د انسان د ژوند ټولې خواوې له هغه څخه علم او هنر تر اغيزې لاندې راوستي دي.

په لوديځ کې سربيره د هنري فعاليتونو په طريقه - له هغه سره چې د هنر او تمدنونو د تاريخ په اوږدوکې تر سترگوکيږي، توپير لري او هنرمندانو پرلپسې موضوگانې او مصرفي مواد، د کار لارې او د هنري آثارو بيان ته بدلون ورکړی دی. په همدې دليل له ۱۵ ميلادي پيړۍ څخه تر اوسه پورې بېلا بېل هنري سبکونه په لوديځ کې رامنځ ته شوی او څو ورځې يې دوام موندلی او وروسته آزاد شوي او نوي طريقې يې رامنځ ته کړی دې.

دا بدلونونه د لويديځو ملتونو تر څنگ په ټوله نړۍ کې رامنځ ته شوي دي، له مهمو عاملونو څخه يې يو د هنري پوهنځيو شتون دي، چې لويديځې طريقې پکې زده کيږي.

## شپږم لوست د تدریس د لارښود پلان( نهم ټولګي)

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د کالیزې ډیزاین اونقاشي کول.** | |
| ۲-د زده کــــــړې ( پــوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- د څلورو فصلونو د نقاشي او د هغې د میاشتو له ویشلو سره بلدشي.<br>۲- د کالیزې په جوړولو پوه شي.<br>۳- د کالیزې د صفحو د ښکلا په ارزښت پوهیدل. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي، کتنې، عملي، د کاریووالی. | |
| ۴- د زده کــــــړې د اړتیاوړ وسایل | کاغذ، پنسل، پنسل پاک، آبي رنګونه، مویک، قیچي، سلښت. | |
| ۵- د ارزونې ډول | عملي،ځانی کتنه، د ستاینې درجې، کتنې، ارتباطي مهارتونه. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>له زده کوونکو سره روغبړ، پوښتنې او ځوابونه د کارکولو لپاره تیاری او د کار پیل. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>۱- د څلورو فصلونو منظرې مو په پام کې نیولی دي؟<br>۲- خپلې ذهني طرحې په عمل کې پلې کولی شئ؟ | دقیقې ۵ |

| ۷- د ښـــوونکي د تـــدريس فعاليتونـــه ( د مفــاهيمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه |
|---|---|
| ۱- ښـــوونکي دې د کـــاليزې د جوړولـــو پـــه هکلـــه معلومات ورکړي او د عملي کار په هکله دې دوی تـه لارښوونه وکړي.<br>۲- ښوونکي دې زده کوونکي په گروپو وويشي او هـر گـروپ دې د کـاليزې د نقاشـي او ښـکلا پـه اړه سـره وغږيږي.<br>۳- د لوست په پای کې د دوی عملي کارونـه وارزوئ او پايلې دې يې نوټ کړي. | ۱- د ښوونکي توضـيحاتو تـه پـه غـور او دقـت غـوږ نيسي او هغه په عمل کې پلي کوي.<br>۲- په خپلو ډلو کې د کاليزې د جوړولو په هکله سره غږيږي او پايلې يې نوروته وايي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

نقاشانو او طراحانو د کاليزي په جوړولو کې زيات ربړونه گاللي دي.

د همدې زحمتونو او ربړونو په نتيجه کې يې څو ډوله کاليزې، لکه: جيبي کاليزې، ديوالي کـاليزې او سـرميزي کاليزي طرحه او ډيزاين کړيدي. د اونۍ ورځو، مياشتو ورځو او د کال ورځو ته يې پکې پاملرنـه کړيـده او هغـې کې يې څلور فصلونه په پام کې نيولی دې. تاسې د کاليزې له مخې اونۍ، ورځې، مياشتي او د کال فصـلونه زده کوونکو ته وروښيي، ترڅو د زده کوونکو ذهن د کاليزې د جوړولـو پـه هکلـه روښـانه شـي او دوی يـوه ښـکلې کاليزه جوړه کړي.

## اووم لوست د تدریس د لارښود پلان( نهم ټولګي)

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **دلویدیځو هېوادونو معاصر هنر** | |
| ۲-د زده کــــــړې ( پــوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخـو باندې برلاسي شي.<br>۱- د لویدیځو هېوادونو له هنرونو سره بلدشي.<br>۲- له هنري آثارو سره مینه پیدا کړي.<br>۳- هنري آثاروپیژني. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي، کتنې، ځانګړي او ډله ییز کارونه | |
| ۴- د زده کـــــــړې د اړتیاوړ وسایل | د درسي کتاب، د ښوونکي لارښود، قلم، کتابچه. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، د عمل کولو ارزونه، کتنې، ارتباطي مهارتونه. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>له زده کوونکو سره له روغبړ وروسته پوښتنې او ځوابونه او د لوست پیل کول. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>آیا تراوسه مو د لویدیځو هېوادونو د معاصر هنر په هکله څه اوریدلی و؟ | دقیقې ۵ |

| د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|
| ۱- زده کوونکي دې د ښوونکي توضیحاتو ته پاملرنه وکړي.<br>۲- د توري درې له مخې دې مهم ټکي له ځان سره نوټ کړي.<br>۳- سبکونه او د هنرمندانو نومونه دې خپل ذهن ته وسپاري. | ۱- ښوونکي دې د لویدیځ د معاصر هنر په هکله زده کوونکو ته معلومات ورکړي.<br>۲- مهم ټکي دې په توره دړه ولیکئ.<br>۳- د لویدیځ هنر سبکونه او د هنرمندانو د نمونو په هکله دې توضیحات ورکړي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

د لویدیځ په معاصر هنر کې د لویدیځ له هنري حرکتونو له شلمې پیړۍ څخه تر اوسنۍ دورې پورې ورپیژندل کیږي. ډیر مهم هنري بدلونونه له بېلا بېلو انځورونو سره په دې لوست کې وړاندې شویدي. ترڅو زده کوونکي د لویدیځې نړۍ له اوسنیو هنرونو سره بلد شي.

هنر او فرهنګ د هر ملت د هویت څرګندوي دی. له تاریخي عواملو سره آشنایي د هېوادونو د هنر او د فرهنګ په شکل نیولو کې لوی تاثیر لري، نو ځکه د هنر او فرهنګ ارزښت له ( پخوا څخه تر اوسه) د نوی نسل د زده کړو له ضرورتو نو څخه دي. له دې معلومه شوه چې د هنر تاریخ د هېوادو د تاریخ یوغښتلی جز دي چې د فکري تحولاتو او د ملتونو د اساسي بدلونونو بنسټ ایښودونکي دي.

## اتم لوست د تدریس د لارښود پلان( نهم ټولګي)

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **له بېکاره کاغذي قطیو څخه د لاسي کار جوړول.** | |
| ۲-د زده کـــــــړې ( پــوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخـو باندې برلاسي شي.<br>۱- له باطله موادو څخه د لاسي کار په جوړولو پوه شي.<br>۲- له لاسي کارونو سره د مینې پیدا کېدل.<br>۳- د لاسي کارو په ارزښت پوهیدل. | |
| ۳- د لوست ډولونه | عملي، توضیحي، کتنې، د کاریووالی. | |
| ۴- د زده کـــــــړې د اړتیاوړ وسایل | بېکاره قطي، قیچې، پنسل، سکاشتیپ، سلښت، خط کش ، آبي رنګونه او مویک. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، کتنې، ارتباطي مهارتونه. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>له زده کوونکو سره تر روغبړ وروسته د نوی لوست په اړوند پوښـتنې او ځوابونه او د وسیلو تیارول. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>آیا کله مو له بېکاره ټوټو څخه لاسي کار جوړ کړی دئ؟ | دقیقې ۵ |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
| --- | --- |
| ۱- ښوونکي دې د بېکاره قطیو د راوړولو په هکله زده کوونکو ته لازمه سپارښتنه وکړي.<br>۲- زده کوونکي په ډلو وویشي ترڅو پخپلو ډلو کې له قطیو څخه د لاسي کار په جوړولو سره وغږیږي.<br>۳- د زده کوونکو کارونه وارزوي او پایلې یې له ځان سره ولیکئ. | ۱- د ښوونکي مشوره په پام کې ونیسي او باطله قطي له ځانه سره راوړي.<br>۲- زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د بېکاره قطیو د لاسي کار په هکله سره وغږیږي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

له دې ډول کړنو( فعالیتونو) څخه زده کوونکي زده کوي، چې له بې کاره موادو څخه ښکلي شیان جوړ کړي، د کاغذي دستمالونو قطي، د میوې اوبو او غاښود کریمو له قطیویا د ګوګړو او نورو هر ډول بیکاره قطیو، چې په واک کې یې لري، کولی شي، د بېلا بېلو کار دستیو د جوړولو لپاره کارواخلي. د ښوونیز کال له پیل څخه له هغوی وغوړاځ، چې له بې کاره قطیو څخه د یوه داسې لاسي کار (کاردستي) جوړول په ګوته کړي، هغه قطۍ، چې د غوره شوي لاسي کار لپاره مناسب وي، را ټول کړي. لوړ پوړي ودانۍ، الوتکې، بیړۍ او موټر او یا د دوی د خوښې شیانو جوړول له کوم ډول قطیو څخه ښه او ښکلي جوړیږي؟ څومره بې کاره قطۍ باید را ټول کړي؟ د بې کاره قطیو له را ټولو وروسته زده کوونکي د لاسي کارو جوړولو لپاره تیار دي. بېکاره قطۍ د سلښتو او سکاشټېپ په واسطه سره ټینګوي. که د غوره شوي موضوع ځینې برخې، لکه د موټر څراغونه د معکب بڼه ونه لري، زده کوونکي کولی شي، بې کاره قطي د بیاتي په واسطه په مناسبه بڼه پرې یا ټوټې کړي. هغه ټوټې له نورو برخو سره ټینګې ونښلوي، له هغه وروسته چې لاسي کار جوړ او تیار شو، هغه ښکلي کړئ، له بېلا بېلو رنګونو څخه په ګټه اخیستنې لاسي کار رنګ کړئ او یا یې په رنګه کاغذونو وپوښئ، د کاردستي نورې برخې لکه: د الوتکې ښښې، د بیړیو بادبان او موټر څراغونه وربادنې ورزیات کړئ، ترڅو بشپړ او ښکلي شي. که چېرې کوم زده کوونکي د لاسي کار ښکلا پیدا کړه، هغه وهڅوئ.

## نهم لوست د تدریس د لارښود پلان( نهم ټولګي)

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د هندسي ډیزاینونو کاپي کول** | |
| ۲-د زده کـــــــړې ( پـــوهنیزې، مهـــارتي او ذهنیتي موخې): | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لانـدې موخـو باندې برلاسي شي.<br>۱- د هندسي ډیزاینو له کاپي کولو سره آشناشي.<br>۲- د هندسي ډیزاینونو په ښکلا پوه شي.<br>۳- د هندسي ډیزاینونو له ښکلا سره مینه پیدا کړي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | عملي،کتنې، ننداریز، د کاریووالی، پوښتنې او ځوابونه. | |
| ۴- د زده کــــــــړې د اړتیاوړ وسایل | کاک کاغذ، ترس کاغذ(شفاف) پنسـل، پنسـل پـاک، آبي رنګونـه، مویـک او د اوبـو لوښي. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني کتنه، د ستاینې درجې،کتنې، ارتباطي مهارتونه. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>له زده کوونکو سره له روغبړ وروسته د کار کولو لپاره او د وسیلو د کارولو پیل کول. | وخت ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>آیا تردې مخکې مو ډیزاینونه کاپي کړي وو؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
| --- | --- |
| ۱- ښوونکی دې ځینې ډیزاینونه له ځان سره راوړي او زده کوونکو ته دې وښیي.<br>۲- د کاپي کولو په هکله دې معلومات ورکړي.<br>۳- کارونه یې وارزوي او پایلې یې له ځان سره یاددابنست کړي.<br>۴- د دوی کارونه دې ننداریې ته وړاندې کړي. | ۱- د ډیزاینونو نمونې په غور او دقت وګورئ او په هکله یې سره وغږیږي.<br>۲- د لوست وسیلې تیارې کړئ او ډیزاین کاپي کړئ.<br>۳- تیاره شوي کاپي د میز او یا د نقاشي په تخته ونښلوئ.<br>۴- تکمیل شوې طرحه، له تیاره رنګو څخه د روښانه رنګو په لور خپل ډیزاین رنګه کړئ. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

د چټک کار ډېره آسانه طریقه کاپي کول دي. چې نقاشان او طراحان د تصویرونو او ډیزاینونو لپاره ترې ګټه اخلي. د ډیزاینونو د کاپي کولو لپاره د ترس کاغذ د هغې په سر د سکاشټیپ په واسطه نښلوي او هغه باندې خطونه یا اوت لاین یې د پنسل په واسطه روښانه کوي، ترڅو ډیزاین له اصلي صفحې څخه د ترس کاغذ ته ورنقل شي. کله چې ټول خطونه په دقیقه توګه د ترس کاغذ ته نقل شي، نو بیا له اصلي ډیزاین څخه جلا کوي د ترس کاغذ په شاکې خطونه یو ځل بیا وکاروئ او په یوه سپین کاغذ او یا مقوا باندې یې ونښلوئ او خطونه په لږ څه فشار سره تازه کړئ، کله چې ترس کاغذ ترې جلا کړئ نو وبه ګورئ، چې ډیزاین سپین کاغذ او یا مقوا ته انتقال شویدي پس له هغې یې رنګه کړي او ښکلا وروبخښئ.

## لسم لوست د تدریس د لارښود پلان( نهم ټولګي)

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د افغانستان د هنري مؤسسو پیژندل.** | |
| ۲-د زده کـــــــړې (پــوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کیږي چې د لوست په پای کې په لانـدې موخـو باندې برلاسي شي.<br>۱- د افغانستان له هنري مؤسسو سره بلدشي.<br>۲- د هنري مؤسسو په فعالیتونو پوه شي.<br>۳- د هنري مؤسسو له هنري آثارو سره مینه پیدا کړي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي، کتنې، خبرې اترې، پوښتنې او ځوابونه. | |
| ۴- د زده کـــــړې د اړتیاوړ وسایل | درسي کتاب او د ښوونکي لارښود کتاب. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، کتنې، ارتباطي مهارتونه. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>له روغبړ وروسته د هنري مؤسسو په هکله له زده کوونکو څخه پوښتنې او ځوابونه. | وخت۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>آیا هنري مؤسسو او هنري فعالیتونو له پخوا څخه شتون درلود؟ | دقیقې ۵ |

| د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
| --- | --- |
| ۱- زده کوونکي دې د ښوونکي توضیحاتو ته پاملرنه وکړي.<br>۲- د هنري ښوونځیو نومونه دې په خپلو کتابچو کې نوټ کړي.<br>۳- د لسم لوست په هکله دې په خپلوکې سره وغږیږي، که په کوم څه پوه نه شوی له خپل ښوونکي څخه پوښتنې وکړئ. | ۱- ښوونکی دې د هنري مؤسسو په هکله توضیحات ورکړي.<br>۲- د هنري ښوونځیو نومونه د ټولګي په توره دړه ولیکئ. او د هغې دورپیژندلو هڅه دې وکړي.<br>۳- د لسم لوست له مخې زده کوونکو ته معلومات ورکړئ. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

دا لوست د افغانستان د هنري مؤسسو پیژندلو ته ځانګړی شوی دی او د دویم لوست بشپړوونکی دی. د اوسني یا معاصر افغانستان هنري آثار څو وروستیو نسلونو چې په بېلا بېلو اوسنیو هنري مرکزونو کې یې زده کړه موندلي ده، یادونه شویده او په دې لوست کې زده کوونکي کولی شي چې په اوسني افغانستان کې د هنر له رامنځ ته کیدو سره آشناشي.

# يولسم لوست د تدريس د لاربنود پلان( نهم ټولګي)

**د تدريس موده ( يو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرليکونه | د مطلبونو بيان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **له شعر څخه انځورګري** | |
| ۲-د زده کــــــــړې ( پــوهنيزې، مهــارتي او ذهنيتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخـو باندې برلاسي شي.<br>۱- د شعر د نقاشي له طريقې سره آشناشي.<br>۲- د شعر له فضا څخه خيالي او ذهني انځورګري سره بلدشي.<br>۳- په يوه شعر کې ذهني انځورګري وپيژني. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضيحي، عملي، مشاهده، پوښتنې او ځوابونه. | |
| ۴- د زده کـــــــړې د اړتياوړ وسايل | پنسل، پنسل پاک، آبي رنګونه، مويک، کاک کاغذ، د اوبو لوښي. | |
| ۵- د ارزونې ډول | د عملي کولو طريقه،ځاني کتنه، د ستاينې درجې،کتنې، ارتباطي مهارتونه. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>له زده کوونکو سره له روغبړ وروسته د نوي لوست په هکله د پوښتنو ځوابونه او د شعر په هکله ديوې ذهني نقاشي د کار پيل کول. | وخت ۵ دقيقې |
| | **د انګيزې رامنځته کول:**<br>کله مو په خپل ژوندانه کې خيالي او ذهني انځورکښلی دي؟ | دقيقې ۵ |

| د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو کره او ارزونه) |
|---|---|
| ۱- زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او د شعر په یوه موضوع دې سره خبرې وکړي او یو ذهني انځور دې وکاږي.<br>۲- زده کوونکي دې د کیسو، داستانونو او یا دیو شعر په اړه یو ذهني انځور طرحه کړي.<br>۳- خپله طرحه دې په مناسبو رنګو رنګه کړي. | ۱- ښوونکی دې د خیال او تفکر فضا د رسمولو لپاره د زده کوونکو په ذهن کې ایجاد کړي.<br>۲- ښوونکي دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د شعر او د لنډو کیسو په هکله فکر وکړي.<br>۳- په آخرکې د دوی کارونه وارزوئ او له ځان سره یې ولیکئ. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

زده کوونکو په اووم ټولګي کې د ( خپلې خوښې د فصل نقاشي) په ذهني ډول تجربه کړیده. په اتم ټولګي کې ( له جشنونو او ملي لوبو) سره آشناشوي او ذهني نقاشي یې تجربه کړیده. په نهم ټولګي کې د تیرو تجربو درلودلو سره له شعر څخه نقاشي کوي چې لر څه زیات توان او هنري قدرت ته اړتیا لري او هغه تجسمي فضا چې په شعرکې بیان شویده د تصویر په قالب کې زده کوونکو ته په پام کې نیول شویده.
نو ځکه زده کوونکي باید د شعر مفهوم کاملاً درک کړي او وروسته دې خپل احساسات دخطونو، شکلونو، ذهني رنګونو او له جوړښتونو څخه په ګټه اخیستلوسره دکاغذ پر مخ وښیي. له کولاژ ( دکاغذونښول) او یا په نقاشي باندې د رخت د ټوټو یا طبیعي او مصنوعي موادو نښلول) د آزاد شعر په نقاشي کولو کې له تاپه کولو څخه هم ګټه اخیستلی شي.

## دولسم لوست د تدریس د لارښود پلان( نهم ټولګي)

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **له کمپیوټر سره آشنایي** | |
| ۲-د زده کــــــــړې ( پــوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- د کمپیوټر او د هغه له دستګاه سره بلدتیا.<br>۲- د کمپیوټر په پروګرامونو پوهیدل.<br>۳- د کمپیوټر د کار پر ارزښت پوهیدل. | |
| ۳- د لوست ډولونه | کتنې، عملي، توضیحي، د کاریووالي، انتقادي تفکر. | |
| ۴- د زده کــــــــړې د اړتیاوړ وسایل | د کمپیوټر دستګاه، مانیتور، کیبورد، د نقاشي پروګرام. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني کتنه، د ستاینې درجې، کتنې، ارتباطي مهارتونه. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>له زده کوونکو سره تر روغبړ وروسته دکمپیوټر په هکله پوښتنې او ځوابونه او د عملي کار پیلول. | وخت ۱۰ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>آیا په کمپیوټر کې موکومه لیکنه ټایپ او یا ډیزاین کړیده؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷- د ښــــوونکي د تـــدریس فعالیتونـــه ( د مفـــاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه |
|---|---|
| ۱- ښــوونکي دې د کمپیــوټر پـه هکلـه زده کوونکــو تــه معلومات ورکړي او د دوی پوښتنو ته دې ځواب ووايي.<br>۲- د کمپیوټر د دستګاه د کـارولو پـه هکلـه يـې معلومـات ورکړي چې څه ډول ترې ګټه اخيستل کېږي. | ۱- زده کوونکي دې د ښوونکي د معلوماتو مهم ټکي له ځان سره وليکي.<br>۲- له ښوونکي څخه دې د کمپیوټر په هکله پوښتنې وکړي.<br>۳- د کمپیوټر د دستګاه په هکله د ښوونکي توضيحاتو ته دې په ډېر غور او دقت غوږ ونيسي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

د نهم ټولګي د نقاشي په اړوند وروستي فعاليت له کمپیوټر څخه د نقاشي لپاره ګټه اخيستنه ده. د نـهم ټـولګي دوولسم لوست له کمپیوټر سره د زده کوونکو بلدتيا لپاره په پام کې نيول شويدي.

اتلسم لوست- د Paint پروګرام په نقاشي کـې لـه ګټـې اخيسـتنې سـره زده کـوونکي آشـناکوي. د امکـان پـه صورت کې زده کوونکي له نږدې څخه کمپیوټر او له هغې څخه د ګټې اخيستنې له لارو چارو سره آشناکړئ، د موس سمه کارونه، د کمپیوټر روښانول او مړه کول، د کړکيوپرانيستل او ترل ورزده کړئ.

د اتلسم لوست په پلي کيدو د لوست له متن سره سمPaint  پروګرام په کارواچوئ او د هغې ښلابېلې برخې زده کوونکو ته وروښيئ.

## دیارلسم لوست د تدریس لارښود پلان( نهم ټولګي)

**د تدریس وخت ( دوه درسي ساعتونه)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **دیوې ساده میناتوري کاپي** | |
| ۲-د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- د لیدو د قوې غښتلتیا.<br>۲- له ترس کاغذ څخه پرته د کاپي برابرولو له طریقې سره بلدتیا.<br>۳- د یوه ښکلي میناتور پېژندل. | |
| ۳- د لوست ډولونه | کتنه، پوښتنې اوځوابونه، توضیحي، د کار واحد، نمایشي. | |
| ۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل | د ساده میناتوري یوه نمونه، د هغې په کچه کاغذ، پنسل، آبي رنګ پنسل، مویک د اوبو لوښی. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني بیاکتنه، د ستاینې درجې(دکړووړو ارزونه ملاحظه، ارتباطي مهاررتونه). | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه:**<br>د میناتوري په باب پوښتنې او ځوابونه او له یوه ډیزاین څخه د کاپي برابرول. | وخت ۵ دقیقې |
| | **دانګېزې را منځته کول:**<br>د پوښتنې طرحه کول: کولی شئ چې له ترس کاغذ پرته له یوه ساده میناتور څخه کاپي تیاره کړئ. | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکودیا دولوفعالیتونه |
|---|---|
| ۱- د راټولو شوو میناتوریو نمونې ټولو زده کوونکوته وروښیي.<br>۲- د ترس کاغذ له کارونې پرته د کاپي د برابرولو لارې چارې زده کوونکو ته توضیح کړئ.<br>۳- د هغوی د کار طریقه وګورئ او تر لاس شوی پایلې یې ولیکئ. | ۱- د میناتوري نمونې وګوري او د هغه په اړوند خبرې اترې وکړي.<br>۲- د خپل میناتور نمونه په پوره غور سره وګوري.<br>۳- د کار مواد او وسیلي برابرې کړي.<br>4-دکم رنګه پنسل په واسطه په غور سره د میناتوري لوی شکل رسم کړي.<br>۲- کوچني شکلونه د میناتوري له نمونې سره سم پر لومړی شکل ور زیات او طرح یې بشپړه کړي. |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

دا لوست د یوه ساده مینیاتور د مرحلو فعالیت بیانوي. په دې فعالیت کې له زده کوونکو څخه غوښتل شویدي چې د ترس کاغذ پرته کاپي کړئ او میناتور له غټ یا لوی شکل څخه پیل کړئ. ورو ورو جزیات پرې علاوه کړئ. زده کوونکي دې د درسي کتاب، مجلو، کارتونو، پوسترونو چې مینیاتوري ښلا ښل عسکونه ولري، یوه ساده نمونه انتختاب کړئ او له هغې څخه یوه کاپي جوړه کړئ. دا فعالیت د مینیاتوري ظرافت او رنګه کولو لپاره او د زده کوونکو د توجه د جلبولو په خاطر په نظر کې نیول شوي دي.

د کاپي دجوړولو په وخت کې، زده کوونکي د میناتوري په ظرافت او پیچلتیا باندې پوهیږي او دا ځانګړتیاوې درک کوي.

# خوارلسم لوست د تدریس لارښود پلان ( نهم ټولګي)

**د تدریس وخت ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د بېلا بېلو سکویونو یا ګل ګنډ سره آشنایي** | |
| **۲-د زده کـــــړې ( پـــوهنیزې، مهـــارتي او ذهنیتي موخې).** | له زده کوونکوڅخه غوښتنه کېږي چې دلوست په پای کې په لاندنیوموخولاس برى پيداکړي.<br>۱- د ښکلي ګل ګنډ له طریقو سره بلدتیا.<br>۲- دیوه پخواني هنر په شان له ګلدوزي سره آشنایي.<br>۳- د ګلدوزي په ډولونو بلدتیا. | |
| **۳- د لوست ډولونه** | کتنه، پوښتنې اوځوابونه، توضیحي، نمایشي. | |
| **۴- د زده کـــــړې د اړتیاوړ وسایل** | دنخي ټوټې د ګلدوزي نمونې ، ستن، بېل بېل تارونه، د ګلدوزي نمونې یا د هغې انځورونه. | |
| **۵- د ارزونې ډول** | بیاکتنه، د ستاینې درجې، ملاحظ، ارتباطي مهارتونه. | |
| **۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | **لومړني فعالیتونه:**<br>یوه موده مخکې له زده کوونکو و غواړئ، چې دګلدوزي نمونې را ټولې کړي او ټولګي ته یې راوړي. نمونې زده کوونکو ته وروښیي. | **وخت ۱۰ دقیقې** |
| | **دانګېزې را منځته کول:**<br>د پوښتنې طرحه کول:<br>آیا پوهیږي، چې یوه ټوټه ګلدوزي څومره تاریخي لرغونتوب لري؟ | **۱۰دقیقې** |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکودیا دولوفعالیتونه |
|---|---|
| ۱- د ګلدوزي نمونې زده کوونکو ته وروښيي.<br>۳- د ګلدوزي د موادو او لوازمو په هکله توضحات ورکړي.<br>۴- د ګلدوزي ډولونه د بېلګو له وړاندې کولو یا انځورونو سره توضیح کړئ.<br>۵- دګلدوزي ټوټې نقشونه ارزيابي کړئ. | ۱- د ګلدوزي بیلګې وګوري.<br>2-دګلدوزي له وسایلو او موادو سره آشناشي، د هغې ځانګړتیاوې او د کارونې ډول بې توضیح کړي.<br>۳- د دود شووګلدوزیو افغاني نوم دې واخلي.<br>۴- د ګلدوزي دود شوي انځورونه دې توضیح کړي.<br>۵- د درو تاریخي ګلدوزیو نومونه دې واخلي. |

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

څوارلسم لوست زده کوونکي د ګلدوزي له بېلا بېلو ډولونو سره آشناکوي. پنځلسم لوست علمي تجربه او په دې اړوند زده کړه ور په برخه کوي، ډیر زده کوونکي د ګلدوزي جوړولو له بېلا بېلو ډولونو سره بلد یا آشنا دي. په درسي کتابونو کې د پردو د ساده ګلدوزي طریقه څرګندوي. که چېرې زده کوونکي مینه ولري، د ګلدوزي پیچلي او په زړه پورې طریقې تر سره کړي، هغوی د خپلې طرحې په اړوند آزاد پرېږدئ.
که چېرې زده کوونکي په ګلدوزي کې وړتیاولري، دوی دې د ژوند له وسایلو د خپلې خوښې طرحې له لارې، چې د لوست په وروستی برخه کې وړاندې شوي دي، په ټولګي کې تر سره کړي، که چېرې ځینې زده کوونکي په ګلدوزي کې له ځانګړې طریقې څخه کار اخلي، له هغوی وغواړئ، چې د خپل کار طریقه نورو زده کوونکوته بیان کړي، ترڅو ټول له هغې طریقې سره بلد یا آشناشي

## پنځلسم لوست د تدریس د لارښود پلان( نهم ټولګي)

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **د یوه ساده سکوي (ګل ګنډ) جوړول** | |
| ۲-د زده کـــــــړې ( پـوهنیزې، مهـارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لانـدې موخـو باندې برلاسي شي.<br>۱- له یوه ساده ګل ګنډ سره آشنا کېدل.<br>۲- د افغانستان د ګل ګنډ په فولکلور پوهیدل.<br>۳- له افغاني ګل ګنډ سره مینه پیدا کول. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي ،کتنې، عملي،پوښتنې او ځوابونه. | |
| ۴- د زده کـــــــړې د اړتیاوړ وسایل | بېلا بېل رنګه تارونه، ستن، د ګل ګنډ کارګاه، د رخت ټوټه. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني بیاکتنه، د ستاینې درجې، کتنې، ارتباطي مهارتونه. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>له زده کوونکو سره له روغبړ وروسته د موادو او وسیلو ډاډ ګیرنه او د کار پیلول. | وخت<br>۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>له ګل ګنډ څخه مو څه ګټه اخیستې ده؟ | ۵ دقیقې |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکودیا دولوفعالیتونه |
|---|---|
| ۱- ښوونکی دې د گل گنډ د سرته رسولو او د هغه د طریقو په هکله معلومات ورکړي او د امکان په صورت کې دې دوی ته څو نمونې وښيي.<br>۲- ښوونکی دې د گل گنډ او ملي صنایعو په ځانگړې ډول د خامک گنډنې په هکله معلومات ورکړي.<br>۳- د کندهار د خامک گنډلو او د هغې د ښکلا د ارزښت په هکله دې معلومات ورکړي. | ۱- زده کوونکي باید د ښوونکي توضیحاتو ته پاملرنه وکړي او د گل گنډ د گنډلو طریقې زده کړي.<br>۲- د خپل هېواد د لاسي صنایعو په هکله په داخل او خارج کې باید وپوهیږي.<br>۳- له وسیلو څخه په سمه توگه گټه واخلي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

د هنر تاریخ د درسونو په ضمیمه دا لوست د گلدوزي ډولونو ته چې د لاسي هنرونو یو ډول دی ځانگړې شویدی.

زده کوونکو په اتم ټولگي د لاسي هنرونو له څو ډولونو سره چې په اسلامي دوره کې یې پراختیا موندلی او نن هم د خلکو تر منځ باب دي آشنا شویدي.

په دې لوست کې زده کوونکي د گلدوزي له تاریخي قدامت او بېلا بېلو طریقو سره آشنا کېږي. او د بېلا بېلو انځوریزو نمونو په وړاندې کولو سره د گلدوزي ډېر ډولونه سره پرتله ( مقایسه ) کوي.

پنځلسم لوست د گلدوزي عملي کار ته ځانگړی شوی دی، چې محترم ښوونکی د زده کوونکو د توان او تجربو په تناسب ( اېډول) فعالیتونه د گلدوزي لپاره په پام کې نیسي.

## شپاړلسم لوست د تدریس د لارښود پلان( نهم ټولګي)

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **له افغاني هنرمندانو سره آشنا کېدل.** | |
| ۲-د زده کـــــــړې ( پــوهنيزې، مهــارتي او ذهنيتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لانـدې موخـو باندې برلاسي شي.<br>۱- له افغاني هنرمندانو سره آشنا کېدل.<br>۲- د دوی د هنري فعالیت پېژندل.<br>۳- د دوی له آثارو سره مینه پیدا کېدل. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي، کتنې، پوښتنې او ځوابونه. | |
| ۴- د زده کـــــــړې د اړتیاوړ وسایل | درسي کتاب، تصویري چارتونه، د دوی د آثارو لیدنه. | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني بیاکتنه، د ستاینې درجې، ارتباطي مهارتونه. | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>د زده کوونکــو د احــوال تــر پوښــتنې وروســته دې دنــوي لوســت پوښتنې طرحه شي. | وخت ۱۰ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځته کول:**<br>ستاسې له دوستانو څخه کوم یو ښه هنرمند دی؟ | دقیقې ۱۰ |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکودیا دولوفعالیتونه |
| --- | --- |
| ۱- ښوونکی د افغاني هنرمندانو په هکله معلومات وړاندې کوي.<br>۲- د دوی د هنري فعالیتونو په اړه هم معلومات ورکوي.<br>۳- د دوی د هنري آثارو د ارزښت په اړه باید زده کوونکي وهڅول شي چې اضافي معلومات تر لاسه کړي. | ۱- زده کوونکي دې د هنرمندانو د بیوګرافي په هکله د ښوونکي خبرې په دقیق ډول واوري.<br>۲- مهم ټکي له ځان سره نوټ کړي او خپل معلومات بشپړ کړي.<br>۳- د افغاني هنرمندانو آثار دې په غور او دقت سره وګوري او د کارکولو طریقه یې په پام کې ونیسي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

په دې لوست کې به زده کوونکي د افغانستان له دوو معاصرو هنرمندانو، استاد کریم شاه خان، او له استاد شبنم سره اشنا شي. زده کوونکي په اوومو او اتمو ټولګیو کې هم د افغانستان له پخوانیو هنرمندانو سره بلد شوي دي.

## اوولسم لوست د تدریس د لاربنود پلان( نهم ټولګي)

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**د آرت او هنر مضمون:**

<table>
<tr><th>سرلیکونه</th><th colspan="2">د مطلبونو بیان</th></tr>
<tr><td>۱- د لوست موضوع</td><td colspan="2">د قرآنکریم د آیاتونو له برجسته جوړولو سره بلدشي</td></tr>
<tr><td>۲-د زده کړې ( پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې).</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- د قرآنکریم آیاتونو له برجسته جوړولو سره آشناشي.<br>۲- د اسلامي لوحو، خطونو ، ښکلو سطر ډیزاینونه وپیژني.<br>۳- د ختیني لوحې له برجسته جوړولو، رنګه کولو سره مینه پیدا کړي.</td></tr>
<tr><td>۳- د لوست ډولونه</td><td colspan="2">توضیحي، کتنې، پوښتنې اوځوابونه، د عملي کار، نندارېز.</td></tr>
<tr><td>۴- د زده کړې د اړتیاوړ وسایل</td><td colspan="2">د رس خټه، میز، د آشګز لرګي، پلاستیکي چاړه، د ترس کاغذ،پنسل، د اوبو لوښی، د قرآنکریم د آیت یوه کاپي.</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې ډول</td><td colspan="2">ځاني بیاکتنه، د ستاینې درجې، کتنې، ارتباطي سهارتونه.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td>د زده کوونکو د حال پوښتنه:<br>له زده کوونکي سره تر پوښتنې وروسته د نوي لوست په هکله پوښتنې اود ضروري وسیلو پيژندل او د کار پیل.</td><td>وخت<br>۱۰<br>دقیقې</td></tr>
<tr><td>د انګیزې رامنځته کول:<br>تاسې کله د جوماتونو د دروازو او یا د محراب په سر د قرآنکریم آیاتونه چې په ښکلی خط لیکل شوي وي لیدلي دي؟</td><td>دقیقې<br>۱۰</td></tr>
</table>

| د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه<br>( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) |
| --- | --- |
| ۱- زده کوونکي د قرآني آیت کاپي کولو، ختې ته انتقالول او د هغې کیندل له خپل ښوونکي څخه زده کړي.<br>۲- دکیندلو په وخت کې له مودلیر یا پلاستیکي چاړې څخه کار واخلي او په ډېر احتیاط سره اضافي خټه وباسي.<br>۳- تروچیدو وروسته یې رنګه کړي. | ۱- ښوونکی دې د خټینې لوحې د برجسته، لیکلو، جوړولو او ښکلي کولو په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکړي.<br>۲- د هوارې خټې په سر د قرآنکریم د آیت د کاپي کولو په اړه دې له دوی سره مرسته وکړئ.<br>۳- د رنګه کولو طریقه دې زده کوونکو ته وروښيي او د دوی کارونه دې په ټولګي کې ننداره ته وړاندې کړي. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

په دې لوست کې زده کوونکي یو برجسته نقش له خټو تیاروي، هغوی په اتم ټولګي کې د بسم الله الرحمن الرحیم له کاپي سره بلد یا آشنا دي، له بېلا بېلو خطونو څخه د کاپي برابرولو په ښه پوهیږي، د نهم ټولګي په څلورم لوست کې دوی د ختیني لوحې په برابرولو او د هغې پر مخ د نقشونو له جوړولو سره بلد شوي دي. زده کوونکي کولی شي چې د قرآن کریم له آیاتونو څخه د یوه په غوره کولو، چې په ښکلیي خط لیکل شوی وي، له هغه څخه د ترس کاغذ پر مخ نقش په ښکلي ډول د ختیني لوحې پر مخ تر سره کړي.

په دې کړنه یا فعالیت کې باید د خټینې لوحې غټوالی زیات وي، کله چې اضافي خټې د قرآن کریم آیاتونو له چارچاپیره لرې شي، یوه لایه له خټینې لوحې څخه پاتې کېږي. د لیکنو د ساتنې لپاره ښه زمینه برابروي، لکه: ( د اوولسم لوست انځورونه په ۵۴ او ۵۵ مخونو کې) له دې امله له څلورم لوست سره سم چې اضافي خټې بې لرې کېږي، د کار ځینې برخې له یوې مخې خالی کېږي، ترڅو چې د شبکه کاري په څېر راشي، په دې لوست کې یوه برخه د ختیني لوحې پاتې کېږي او د دې امکان رامنځ ته کوي، چې ختیني لیکنې د هغې پر مخ په برجسته ډول وي. ښوونکي باید د کار له پیل څخه مخکې د قرآني دعاګانو د ښکلي لیکلو طرح چې زده کوونکو غوره کړې ده. وګوري. که چېرې خطونه او لیکنې یو په بل کې ننښتي وي او د هغې د نقش جوړول مشکل وي، له هغوی وغواړئ، چې آسانه او ساده طرحه غوره او انتخاب کړي.

د کار پر وخت ښوونکی باید زده کوونکو ته سپارښتنه وکړي، چې په خټینه لوحه کې د پنډوالی یا ضخامت کچه په ټولو برخو کې یو شان وساتي. د کار له ختمیدو او د لوحې له وچیدو وروسته، هغه برجسته نقش زده کوونکي کولی شي، خپل کار رنګ کړي او پر هغه ورنس ووهئ، ترڅو چې رنګ ثابت او شفاف شي، د کورې په شتون کې ښه داده چې لومړی کارونه پاخه شي او وروسته رنګ کړای شي.

## اته لسم  لوست د تدریس د لارښود پلان( نهم ټولگي)

**د تدریس موده ( یو درسي ساعت)**

**مضمون آرت او هنر**

| سرلیکونه | د مطالبو بیان | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **په نقاشي کې له (Paint) پروگرام څخه گټه اخیستل.** | |
| ۲-د زده کــــــــړې ( پــوهنیزې، مهــارتي او ذهنیتي موخې). | له زده کوونکو څخه غوښتنه کېږي چې د لوست په پای کې په لاندې موخو باندې برلاسي شي.<br>۱- د نقاشي کولو لپاره د PANIT له پروگرام سره آشنا کېدل.<br>۲- د (Paint) په پروگرام رسامي وکړاي شي.<br>۳- د (Paint) پروگرام له رنگو او وسیلو سره آشناشي. | |
| ۳- د لوست ډولونه | توضیحي، کتنې، عملي کار، ننداریز، د کاریووالی. | |
| ۴- د زده کــــــــړې د اړتیاوړ وسایل | کمپیوټر او د هغه نوری وسیلې، لکه: مانیتور، موس، کیبورد، C-PU | |
| ۵- د ارزونې ډول | ځاني بیاکتنه، ( عمل کولو د ارزونې مقیاس) د ستاینې درجې، کتنې، ارتباطي سهارتونه. | |
| ۶- په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | **د زده کوونکو د حال پوښتنه:**<br>له زده کوونکو سره له روغبړ وروسته د کمپیوټر د Paint پروگرام په اړه پوښتنې او ځوابونه. | وخت ۱۰ دقیقې |
| | **د انگیزې رامنځته کول:**<br>کله مو د Paint په پروگرامو نقاشي کړیده؟ | دقیقې ۱۰ |

| ۷- د ښوونکي د تدریس فعالیتونه ( د مفاهیمو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکودیا دولوفعالیتونه |
|---|---|
| ۱- ښوونکي دې زده کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې خپل کمپیوټر بل یا روښانه کړي د Start د تڼی په کلیک کولو چپ طرف ته به یوه نوی مینو خلاصه شي.<br>۲- ښوونکی دې لارښوونه وکړي چې علامه ښود Programs لیکني ته وروليي ترڅو بله مینو خلاصه شي.<br>۳- Accessorles پیدا کړي او علامه ښود د هغې خواته ورولي یوه نوې مینو به خلاصه شي چې د Paintد پروګرام په نوم یادیږي د دې ټولو په هکله معلومات ورکړئ. | ۱- زده کوونکي دې د ښوونکي لارښوونې سره سم خپل کمپیوټر روښانه کړي. په چپ طرف کې یوه تڼې ده Start نومیږي. په هغه کلیک کړئ. په کمپیوټر کې به یوه نوې صفحه خلاصه شي.<br>۲- د پروګرامونو د پیدا کولو طریقې له خپل ښوونکي څخه زده کړئ.<br>۳- Accessorles لست ته علامه ښود ورولي او کلیک یې کړئ یوه نوي مینو به خلاصه شي چې دPaint پروګرام په نوم یادیږي په هغې نقاشي وکړئ. |

**د ښوونکو لپاره اضافي معلومات**

دا لوست زده کوونکي د خپلې خوښې Paint پروګرام سره آشنا کوي. که کیدای شي زده کوونکي له کمپیوټر او له هغه څخه له ګټې اخیستنې سره آشنا کړئ او د موس سم نیول، د کمپیوټر روښانه کول او مړه کول، دکړکیو خلاصول اوتړل دوی ته وروښیئ د۱۸ لوست له مخې د Paint پروګرام فعال کړي او د صفحې بېلابېلې برخې زده کوونکو ته وروښیئ. (د کمپیوټر وسیلې په کارو اچوئ او د هر یوه د کار ښه زده کوونکوته وروښیي. د رنګ پلیت هغوی ته وروپیژنئ او د کار ډول یې ورته ښکاره کړئ. د دې لوست عملي فعالیت یوه نقاشي چې لهPaint پروګرام څخه په ګټه اخیستلو سره زده کوونکي باید د خپلې خوښې موضوع غوره کړئ، خپله طرحه د پاڼې پر مخ اجرا او وروسته هغه رنګ کړئ.

که چېرې کمپیوټر په واک کې نه لرئ په دوولسم لوست کې د کتاب له انځورونو ګټه واخلئ دستګاه زده کوونکو ته وروپیژنئ او د بېلابېلو امکاناتو په اړوند، چې په واک کې یې لري، خبرې وکړئ او هغوی وهڅوئ، چې د تلویزیون ښوونیز پروګرامونه وګوري او له کمپیوټر سره ډېره آشنایي پیدا کړي.

همدارنګه اتلسم لوست د کتاب له مطالبو او انځورونو سره زده کوونکي بلدوي او له Paint پروګرام سره یې آشناکوي او د کمپیوټر په واسطه د نقاشي نمونې وروپیژنئ د هغې د توپیرونو او د هغه ابزارو چې د دوی لپاره ورڅخه ګټه اخیستل شوی ده، په اړوند خبرې اترې وکړئ.

# دافغانستان د ملي موزيمونو سره پيژندل

## د کندهار موزيم:

د کندهار د موزيم لرغوني لوښي او أثار تر ۱۳۳۴ هـ ش کال د ښاروالي له وسايلو سره يوځای ساتل کېدل. په همدې کال کې د کندهار د نايب الحکومه عبدالغني خان په امر او لارښوونه د ښاروالۍ دفترونه او د موزيم ماموريت سره جلا شول د موزيم لپاره يوه خونه و ټاکل شوه چې لرغوني آثار د ننداريې لپاره په کې په منظم ډول کېښنودل شول. په ۱۳۳۹ هـ ش کال کې د پوهنې وزارت د اقدام له مخې موزيم له ښاروالي څخه جلا له ۷۰۰ أثارو سره د پوهنې په مديريت پورې وتړل شو. ددې موزيم ځينې أثار د دولتي ادارو لخوا اهدا شوي و او ځينې نور يې له بازار څخه رانيول شوي وو.

## د غزني موزيم:

د لرغونو آثارو د زياتيدو په وجه چې په يوه خونه کې ساتل کېدل، دغزني د موزيم د تاسيس سبب شول ددې موزيم آثار ځينې په ناڅاپي ډول لاس ته راغلي دي، لکه: د بيلو بيلو زمانو لرغوني سکې، خطي نسخې، د ډبرو د لوښو ټوټې وې چې د سلطان محمود غزنوي د مقبرې په ودانۍ کې ساتل کېدې. د ايتالوي لرغون پيژندونکو د کيندلو په نتيجه چې د غزنې په مختلفو سيمو کې يې وکړې ډير لرغونې آثار لاسته راغلل چې ځينې يې له اسلام څخه مخکې او ځينې نور و يې په اسلامي دورو پورې تړاو درلود، نو ځکه پس له هغې د غزني موزيم زيات ارزښت پيداکړ. د غزني د موزيم آثار دوه ډوله دي. يو هغه آثار دي چې له کيندنو پرته لاس ته راغلي دي په عمومي ډول د غزني له بازار څخه اخيستل شوي دي لکه قلمي نسخې، ډبرې ، لوحې او فلزې آثار چې د غزني ښار نه دباندې له اطرافو څخه لاس ته راغلي دي، د غزنويانو په دورو پورې اړه لري چې په هغه کې دوې لويې کتبوې چې په هغې باندې د مات شوي صليب او په کوفی خط د ليکنو علامې دي، د زمريانو مجسمې چې په بڼونو کې د اوبو د فوارو او يا شيندلو استفاده ترې کيده. د مرمرو ډبرې چې په هغې باندې د حيواناتو څيرې په  متخير العقول (د عقل څخه پورته) کيندل شوي وې، سبکې، سفالي لوښي، د ښکلا ټوټې چې په غالب گمان له ختې او ځينې له محلي گچ څخه دي. ددې آثارو په ډله کې شامل دي. د غزني موزيم ارزښت په دو اصلونو کې نغښتي دي. لومړی دا چې موزيم د غزنويانو د دوران د هنري سبک ښکارندوي دي او دويم دا چې د غزني د موزيم ځينې آثار له اسلام څخه په مخکې دورو پورې تړاو لري.

## د منابعو فهرست


۱- رهنماي تدريس نقاشي د ماشومانو او نوو ځوانانو لپاره غلام محي الدين شبنم غزنوي ۱۳۸۰

۲- رهنماي درسي هنر د ابتدايي دورې د لومړي، دويم او دريمو ټولگيو د ښوونكو لپاره كوډ۵۳/۴ /۱۳۸۵

۳- رهنماي مواد و اسلوب هاي طراحي و نقاشي رويين پاكبار.

۴- مباني هنري هاي تجسمي، فني و حرفوي كوډ ۲۱/ ۳۸۵، ۱۳۸۶

۵- اصول و مباني هنر هاي تجسمي، ډكتر محمد حسين حليمي.

۶- طرح و شكل (كلاس مقدماتي من درباهاوس)، يو هانس ريتن.

۷- طراحي فني و حرفه يي: كوډ ۳۵۹/۹۲، ۱۳۸۶

۸- د رنگ كتاب ايتن.

۹- كارگاه چاپ دستي ۱ فني و حرفه اي كوډ ۳۵۹/۹۲، ۱۳۸۶

۱۰- دايرة المعارف هنر: روبين پاكبار.

۱۱- تاريخ هنر: ارزښت كامبريچ، نشرات تهران، ۱۳۸۰

۱۲- د نړۍ د هنر تاريخ فني و حرفه اي كوډ ۴۰/ ۳۵۸و ۷/ ۴۷۰، ۱۳۸۶

۱۳- سيرهنر در تاريخ ۱، د پوهنځي مخكې، كوډ ۵۹۴/۳، ۱۳۸۶

۱۴- افغانستان ( د مقالو مجموعه) ژباړه هوشنگ اعلم و مرتظي اسعدي.

۱۵- فشرده تاريخ افغانستان، فاروق انصاري د كابل دمطالعاتو مركز ۱۳۸۶

۱۶- تاريخ مختصر افغانستان، عبدالحي حبيبي.

۱۷- تاريخ خط و نوشته هاي كهن افغانستان، عبدالحي حبيبي.

۱۸ موزيم پېژندنه اوپه افغانستان كې دموزيمونوتگ لاره داتنوگرافي اولرغون پېژندنې ډيپارټمنت د اجتماعي علومو پوهنځی د كابل پوهنتون استاد محمدرسول باوري.۱۳۷۵